دغلام محی الدین افغان شپیتم تلین



# دغلام محی الدین افغان افکار او آثار

دکابل پوهنتون خپرونی

۱۳۶۰

د غلام محی الدین افغان شپیتم تلین

# د
# غلام محی الدین افغان
# افکار او آثار

خپرونکی

کابل پوهنتون




د ژبو او ادبیاتو پوهنځی

۱۳۶۰



ناست له ښي خوا: محمد ابراهیم، حاجي ګل احمدخان، فتح محمدخان، محترم محی الدین خان زخمان لسندهاري، میرمحمد قاسم لغمانی

ولاړ له ښي خوا: میرهاشم لغمان، شیر احمدخان، عبدالهادي خان داوي، عبدالغني خان جبار خیل

# یادښت

د شلمې پېړۍ له پیل سره نړیواله پانګواله (سرمایه سالاري) خپل لوړ ستونځ (امپریالیزم) ته په رسېدو کې وه او په دې توګه یې د رابرڅولو لپاره پاټکیزه (طبقاتي) او خپلواکیزه ژوند جګړه په نړیواله کچه ورځ تر ورځ تودېده او تندېده. د اروپايي او بیا په تېره د انګرېزي ښکېلاکګرۍ او ځبېښناګرۍ پانګواکۍ (امپریالیزم) پنځګونې لوېځوچې او په ځانګړې توګه اسیا، افریقا او لاتینه امریکا په خپلو تورو منګولو کې نیولې وې او په دې توګه یې د ځمکې غونډارې پر یوې څلورمې واکمنې او یادارې چلوله. په هماغو شېبو ورځو کې چې دغه خونړي تالانګراو نور سره په خپلو منځو کې د لاسکتوو (محکومو)، ښکېلو او نیم ښکېلو هېوادو پر وېش او انحصار یو بل ته ګواښېدل او له دې سره د نړیوالې انسان دښمنې پانګواکۍ په دننه کې د ضد و بډ او مقابلې زړې ورو ورو سر راواخیسته او وده یې موندله. پاټکیزو او ژغورنده ملي پاڅونونو او غورځنګونو پر له پسې زور اخیست او د دغه وېش او انحصار په لار کې یې ورته درنې درنې کړکېچې اچولې. ترڅو د لومړۍ نړیوالې جګړې اور بل شو او د لاسبرو خپل منځي اخ و ډب او د لاسکتوی ټینګاریز (مقاومتي) غورځنګونه سره یو لاس شول، له دې سره نړیوالــې وینې څښونکې پانګواکۍ د رانسکورېدو بهیر (پروسې) پیل وموند او پر ځای یې د یوه نوي نیاومن ټولنوټیز (اجتماعي ـ اقتصادي) نظام بنسټ په ټینګېدو شو.

د ((اسیا بیداري)) د لیکوال خبره هغه تاریخي شېبه رارسېدلې وه چې په متمدنه او پرمختللې اروپا له خپل پرمختللي او ځلاند تخنیک، شتمن او هراړخیز فرهنګ او مشروطیت سره سره د یوه ستر نړیوال تاریخي ونج له وېرې د منځنیو پېړیو د ټولو وروسته پاتې او وروستو نظامونو ملاتړ وکړي او مخ پر ځوړې او زوال بورژوازي یې د مزدورۍ مریتوب د ساتنې په هڅه له ټولو زوال شویو او زوالېدونکو ځواکونو سره لاس یو کړي.

د نړیوالې پانګوالۍ او د روسیې د ۱۹۰۵ کال غورځنګ اسیا له درانه خوبه راویښه کړه. په سلو میلونو ناپوهو ځپلو وګړو چې د منځنیو پېړیو په تورتم کې یې ټپه راوېدهلې،

د نوي ژوند. د لومړني انساني حقوقو او ديموکراسۍ لپاره راپاڅيدل. د نړۍ د پرمختللو هيوادو کارګران په پوره شوروشوق او تلوسه له ټولو ښه سره د ځمکې غونډاري په ټولوبرخو کې نړيوال زغورنده غورځنګ د دغې پياړي ودې ځارو وو.

د اروپا بورژوازي چې د کارګري غورځنګ له زوره په وېره کې وه. ځان د ارتجاع، پوځيانو، کشيشانو او جهل پالو په غېږ کې واچاوه. مګر د اروپايي هيوادو پرولتاريا او د آسيايي هيوادو ځواني ديموکراسۍ چې پر خپلو ځواکونو او وګړنيو برګنو يې ډ ا ډ او باور درلود. د هغې پر له پسې ور ستيدونکې بورژوازي ځای نيوه. د اسيا ويښتيا او د اروپا د پرمختللو کارګرانو د واکمنۍ لپاره د مبارزې پيل د نړۍ د تاريخ د يوه نوي څپرکي نښانه وه چې د شلمې پېړۍ په سرکې پرانيستل شو.

سړی اټکل کولای شي چې د جهاني پېښليك په داسې نازکو شيبو کې به د اسيا پر زړه څه تيريدل. د غلته د اخونړي اميرعبدالرحمن (۱۸۸۰—۱۹۰۱) ترڅپوړه الـــی زورواکی لاندې د افغان اسکيرلي او زارځپلي ولس ماستونی ته راغلي او د اسيايي استبداد هغه بد ترينه، بيلګه پرې ازمېيل شوې وه.

له بهره د نړيخورو انګريزي پانګواکانو او له دننه د ځبيښناګګروفيوډالانو نادودو او ناخوالو له اده باده ايستلی او کنګال ونګال کړی و. هيواد وران ويجار او انسانيت يکی زموږ زموږ اولتاړ لتاړ و.

ترڅو ترې خدای خونړی امير واخيست او پر ځای يې ورته د امير حبيب الله خان (۱۹۰۱—۱۹۱۹) غونډې يو چړ چه مار امير وربه برخه کړ او د اکابو پيدا شوه چې نتل شوي اوشړل شوي ځنګياليان، سوبمنان او روښاندان بيرته خپلې پلرنۍ خاورې ته راستانه شي او د دوو غبرګونو ځبيښناګګرو (اميرا او انګريزا) په وړاندې خپله زغورنده غبرګونی جګړه پيل کړي. نوکه د جلاد عبدالرحمن خان مړينه تصادفي وه مګر ترڅنګه يې ټولي نړيوالي پيښې تصادفي نه وې. نړيواله زغورنده پاټکيزه او خپواکيزه ژوند جګړه يوه غوځ پړ او ته رانژدې کيده. اسيا په راويښيدو وه او زړه يې په بوز نيدو. يوخوا ته لوټماري او جګړه ماري انګريزي پانګوالی د خپل ژوند پسه وروستيو سلګيو کې تربل هروخته د دغې خاورې پر اوسيدونکو ظلم وزور راوستی ژ نو له بل لوري په وير شمالي ګاونډي هيواد روسيه کې د څاري پانګواکې جرړې هم په غوځيدو وې او له ستې ځخه يې د يوه نوي سوله دوست او انساندوست نظام غوړ ګی او تانونه په رازرغونيدو وو.

په دې توګه له يوې خوا له شماله د څاري پانګواکی له دننه پاټکيزو او له بلې خوا له ختيځ اوسيله د انګريزي پانګواکی له دننه زغورندوملي غورځنګونوا غيزو د افغان

ولس غبرگونې ژوند جگړه ورغ په ورغ تود وله او تونډ وله . له عثماني توركيې نه نيولــې تربرتانيي هنده پورې دفرارشويو روښاندو زده كړه والو افغانانو بيرته راستېدنـــې ددغې ژوندجگړې لار او لورې تـــوره هم ورسيخوله او هغې ته يې پر له غبنتـــې بنهـه وركوله او بيا په تيره چې دغو مخكښو انقلابيانو شاهي دربارته لارموندله او د محمود طرزي غوندې يوه روښـــاندي انقلابي سرغندوی شخصيت يې لارښوونه كوله .

دغسې يوه رښتيني افغان بچې وكړ اي شول دخپلوږ له لارې په درباركـــې ځاى ونيسي اوله همااغه در باره د دربار او نورو كورنيو اوبهرنيو ناخوالو پرضــــــد نورجنگياليان او فرهنگياليان له ځان سره ملگري كړ ي . نورنود افغان ولس دخپلـــې غبرگونې ژوند جگړې لپاره دتورې اوقلم غبرگونې درستي پركار اچولې وې . سراج الاخبار اوسراجيه دارالمعلمين دنوي انقلابي پښت دروښانـــونې او روزنې لپاره دبلومشالونو او بلسيندو په خير يو پر بل پسې منځ ته راغلل اودناپوهۍ دتورې شپې په زړه كــې دسپيدې چاودپيلامه شوه .

ددغه ولسردتورې او غيرتژبې پښتو دخپرونو اوكتابونو ژبه شوه اوبه دې توگه يـــې دنوي ادبي او علمي ژوند بنسټ كېښوول شو . دهيواد دمطبوعاتو پلار ، محمود ــ طرزي دسراج الاخبار دپښتوليكوالو اوشاعرانويه ډله كې لمستغنى ، داوي ، صالح محمد كندهاري ، عبدالسلام ، محسن كندهاري ، ملامحمدعرض بيگى ، عبدالرسول محمـــدزي ، ملاعبدالباقي اوبيا ترټولو دمخه دمحى الدين افغان غوندې پياوړ ي همكاران پيد ا كړل . محى الدين افغان له نوې زده كړې اونويو انقلابي افكاروسره له برتانيي ـــ هندوستان څخه خپل هيواد ته راستون شوی و . نخپلې مينې اووگړ و وژغورنې تود ولو لوبى په زړه كې غځونى كولې اوويل به يې :

زړه زمادك دی له مينې دوطن
خپل وطن ماته عزيزدي له خپل تن

له يوې خوابه يې په خپلو هيوادپالو اوانقلابي ترانو دسراج الاخبار پاڼـــې رنگينولې اوله بلې لورې به يې دسراجيه دارالمعلمين له لارې دځوان ځواك په انقلابي روزنه كې برخه اخيسته . په كوراوكلوپ كې يې دسياسي سازمانو رلارښوونه اوسرغندوبى كولــــه او په ديوان اودوتركي به يې ملي اوعلمي خبرې اترې اومركې .

دكورنى نيوالى اوبهرني امپرياليستي واكمنۍ دځبيناك اوبنكيلاك په وړاند ې په توده مبارزه كې دغلام محى الدين افغان هراړخيزه ونډه ښه پوره څرگنده اوجوته وه . ده دميوند له سويمنانو سره دخپل تبعيداوزده كړې په وخت كې دانگريز ي

باداري پرضد له هندي او په ځانګړي ډول له پښتني ځغورند و ملي مبارزينـو څخه ډيره پوهه او ازميښت ترلاسه کړی و، اوبه دې چمونوښه پو هيده چې څنګه پـه خپل هيواد کې سياسي مبارزه په پرله غښتني (منسجم) اوسازماني توګه دود کـړي اوپرمخ يې يوسي .

دمشروطه غو ښتني او بيا خپلواکۍ غوښتني په غورځنګ کې د نورو همسنګرانو ښې مټ ژاو داکومه هيښنده خبره نه وه چې په جنازه کې يې لويې ملي او دولتي (خلک) ګډون وکـړي او نوم يې تل لپاره دافغان ولس د ملي ، سياسي، علمي او ادبي غورځنګونو په تاريـخ کې په زرينو ليکـو کښلي پاتې شي ، نوځکه ورته وايو :

ته پرتنګه وې ولاړ په ننګه کې مړ شوې
هم پرننګه دې په ننګه کاځان جار !

کله چې دافغان شپيتم تلين دنمانځنې لپاره مومقدماتي کار پيل کړ . نودمشورتي کميسيون په پريکړه داوښتيله شوه چې پـه سراج الاخبارکي د ده خواره واره خپاره شوي شعرونه اونثرونه او نورې ليکنې راټولې شي، دغه کار دژبو او ادبياتو د پو هنځـي درياست له خوا زلمي هيوادمل ته وسپارل شو . نوموړي دغه (کار) وکړ ، د ده منظـوم او منشور آثار اونورې ليکنې يې راټولې کړې ، اويوه سريزه يې هم پرو ليکله . ماتـه داکارراسپارل شوي و ، چې په سراج الاخبارکې د پښتو په وندې وليکنه وکـړم چې د دغې مجموعې په پيل کې چاپيږي . موږ دواړ و خپلې راسپارل شوې چـارې سرته ورسولې ، اودغه مجموعه مو تياره اوچاپ کړه .

دکابل پوهنتون د دژبو اوادبياتو پوهنځي ته داد ډيرو ياړ اوخوښۍ وړ خبره ده چې دافغانستان دخلکو ديموکراتيک انقلابي ګوند اوديموکراتيک وګړنی جمهوري دولـت له پرمختللی او انقلابي فرهنګي کړنلارې سره سم دغلام محی الدين افغان غوښـتونې د داسي يوه نوميالي جنګيالي او فرهنګيالي افغان بچي شپيتم تلين نمانځي اودغـه داندوژوند په باب دغه ګټور اثر دملي او فرهنګي تاريخ مينو هيـوادوالوته په مينـه وړاندې کوي .

تلپاتې دې وي د پرمختللی تيرملي فرهنګ بلې ډيوې !

پو هاند دوکتورمجاور احمدزيار

دژبو اوادبياتو پوهنځي رئيـــس

کب ــ ۱۳۶۰

# په سراج الاخبار

# کې

# د پښتو ونډه

لیکوال

پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار

کله چې په یوه ټولنه کې پاټکېږوار بېچونه خپل پخوالي او سختوالي ته ورسېږي او زیږندو یه ځواکونه یې د بې نیاوو زیږندو یوار یکوله نا خوالو نه په تنګ او بیا ور سره په جنګ شي، نو هرو مرو د هغې ټولنې ځنډ نسې بشپړ تیا یې بهیر بیړنی کوي او د یوه ښستیز او خړنګیز اوښتن په درشل کې یې دروي. له یوه دغسه راز یو واریز اوښتون یا ټولنیز انقلاب سره د ټولنې رونباندې (روشنفکر) پوړ د بهسوه لار ښود او سرغندوي ځواک په توګه د کم یو هو زیږندو یانو او زیاکښانو لار ښوونې ته را دانګي، او موخن (هدفمن) بهیر ته یې ورسیخوي. د هغوی د پاټکېږې او سیاسي ځانخېرې لپاره تر هر څه د مخه د ښوونې او روزنې لارې چارې پلټي او فرهنګي وده یې په پام کې نیسي چې په دې لړ کې خپرونې او ټولیزې رسنۍ (رسانه هاي ګروهي) د دغو ټولو هڅو په سرکې ځاي نیسي او د یوې بلینډوې اولسي د یوې په څیر ورته زیات ارزښت ورکول کیږي.

موږ ګورو چې په افغانستان کې د تیرې پېړۍ په پاي او د دغې پېړۍ پیل کې سیاسي ځواک له پلوه نږدې یونیم سل کلن واکمن فیوډالي نظام د خونړي امیر عبدالرحمن له زورواکۍ سره خپلې لوړې پوړۍ ته رسي او له دې سره یې د راپرځولو لپاره هاند وهڅه پیل کیږي. په تیره د ښکیلاکګر او تالانګر انګلیسي امپریالیزم لاسپوڅي امیر حبیب الله له منځ ته راتګ سره چې تر خپل هیواد پلوري پلار په پرتله یې دومره واک او ځواک نه درلود. په هیوادکې د پاټکېږې جنګ جګړې د یوې پیلامې په توګه یو سیاسي غورځنګ رامنځ ته شو، چې زموږ په سیاسي تاریخ کې د ((مشروطه غوښتنې)) په نامه یادیږي او له دې سره تر ((شمس النهار)) وروسته ((سراج الاخبار)) نومې ۱۵ ورځنۍ د هیواد د مهالنیو خپرونو یا ټولیزو رسنیو پرهسک راوځلیده. له پرمختللې نړۍ څخه محمود طرزي او غلام محی الدین افغان غوندې هیوادته دراستانه شوو ښاندو او پرمختللو هیوادمینو افغانانو په سیاسي او فرهنګي هلو ځلو داوونیزې بڼه ورو ورو له دربار څخه ټولنې ته را څکوله او د ملي ګټو په ګانه یې ګانه له. ترڅو چې یې پښتو هم پکې ورننه ایسته او په دې توګه یې پر یوه دوه ژبیزه مهالنۍ بدله کړه. وایي کله چې لومړی ځل پکې پښتو چاپ شوه، پر امیر باندې خپل انګریزي باداران سخت را وپاریدل



سره کرښه یې ترې راگرځلې او دیوه گوانښ په توگه یې ورته پرمخ ویشتلی وه . ځکــــه دهغو ښکیلاکگرو په اند دغه کار دلازیاتی ملی او سیاسی ویښتیا اوویښیاری یوه پیلامه انگیرله اودرغورنده ملی غور ځنگ یوه سره نښانه . دغه راز (( ماویلی تاویلی )) ښایــی دمولوي صالح محمد دشعر په سرله را پیدا شو یو ستونزو څخه سرچینه اخیستی وي چی وروسته پر ریا اچول کیږي .

دهیواد دمطبوعاتو پلار محمود طرزي دداسی گوانښونو پر خلاف (( پښتو )) دیوې ملی مسألی په توگه په سراج الاخبارکی پرله پسی رامخ ته کوله او لاس یې ترې نه اخیست که په څه هم ددغه اوونیزي په تمښت او بندښت هم پر یو ته .

محمود طرزي ته پښتو له خپل ادیب پلار غلام محمد طرزي څخه راپاتی وه چی پــه دري او پښتو یې شعرونه ویل اوله خپلو کندهاریانو او نورو پښتنو سره پښتو غږیده . پخپله محمود طرزي هم پر پښتو پوره لاسبري درلود . دده له خپل یو نلیك ( سیاحت نامــی ) څخه داخبره په لاس راغلی ده چی په ۲٦ کلنی کی یی د ۱۸۹۱ دجون پر یوویشتمــــه دیوه افغانی پوهاند ملا جلندر اخند له شاگردانو سره دفلسطین په یافا کی په پښتومرکه کړې وه .

محمود طرزي دسراج الاخبار ددویم خپرنی کال د ۱۲۹۱ دسلواغی په نهمه گڼــه کی دپښتو ژبی مسألی له د (( زبان افغانی اجداد زبان هاست )) ترسرلیك لاندې څیړ ي اودتورکی اخځونو له مخی دهغی آریانی توب او مورینتوب جوتوي . په سراج الاخبارکــی تردغی لیکنی وروسته دپښتو خبرې له یو کلن ځنډ سره مخامخیږ ي، مگر پر۱۲۹۳ کـــا ل یکی دپښتو خپریدنی نابېره پیل کیږ ي چی دغه لومړ ې پر ك څه دپاسه یو کال پایښـــت مومی او دسیاسی پیښو له کبله یکی نوره بیا وتـــه راځی .

د ۱۲۹۳ کال دچنگاښ پرخلورمه دسراج الاخبار ددریم کال په شلمه گڼــه کی عبدالرحمن لودین داسی لیکی :

سراج الاخبار بزبان فارسی طبع ونشر میشود . چون همواره مساعی درنشرواشاعت علوم ومعارف است، بالسنهٔ مروجهٔ افغانستان . لهذا سراج الاخبار افغانیه، این شمـــاره وشماره هاي بعد خودرا بزبان ملی خود نیز تزئین میدهد .

اینست که درین مرتبه، محصول یك قصیده از جناب یك جوان بیداردانشمند هموطن مـــا . جناب صالح محمد خان که یکی ازمدرسین مکتب حبیبیه میباشد ، کامیاب امده . در ذیـــل به طبع ونشرآن پرداختیم . درخصوص عدم موجودیت حروف افغانی که معذوریم ، از قارئیـــن کرام رجای عفو داریم :

داخه عجب دوران دی | چی راغلی پر افغان دی
رنګارنګه ترقـــــی د ه | خه عجب محبوب عنوان دی ۰۰۰)) ۰

محمود طرزي له هغه را وروسته په ټینګه وټیپله چی نور د سراج الاخبار ګڼـــی بی پښتو چاپ نشی د پښتو لاسه دیوه بل همکار (محرر ) ((عبدالهادي داوي)) څخه غو ښتنـــه وکړه چی په دغه کی مرسته وکړي ۰ په دې توګه د ۱۲۹۳ کال د زمري په دویمه ګڼه کـــی د ((احتیاج واخبارته)) ترسرلیك لاندې د داوي یو شعر خپور شو چی پیل یی دادی :
اخبار هرملت ته ، جانه ، ضروري دی واوره مانه !
د تلی میاشت په ۱۳ ګڼــه کی د مولوي صالح یو بل شعر خپریږي چی پکی د امیرستاینه د افغانستان د خپلواکۍ په اړیکه کوي :

قندهار ، مزار ، هرات هم بدخشان می خپل دی
شکرشکر باغمو خپل ، باغبان می خپـــــل دی

د سراج الاخبار په دغه پړاو کی دیوه تکړه شاعر پښتو شعرچا پیږي چی هغه ۲۸ کلن ځوان عبدالعلی مستغنی و ۰ د دغه شاعر دري شعر د پنځلس ورځنۍ د ۱۲۹۰ کال د مرغومـــی په دیرشمه ګڼــه کی خپورشوی و ۰ د زنکوګرافی له د ودیدوسره پکی د مستغنی عکس هـــم په چاپ رسیدلی اویه دې توګه یی په دري شعرونو کی پوره نوم ګټـــلی و ۰ د ده پښتـــو شعر د ۱۲۹۳ کال دلړم په ۲۸ مه ګڼـــه کی په دې ډول خپورشوي و :

داخبار رنګین ګلزارد ي ، اخبارنه دی
چی هزاریی زه یم ، ولی ګلزارنه دی ؟
مستغنی یم زمانم عبدالعلی دی
زه پښتون یم پر بل قوم می کارنه دی
فارسی شعرمی مشهور دی په جهان کی
په پښتو ژبه می شعر شعارنه دی

په همدې ګڼــه کی د (م ۰ ص۰) اولنډ نوم ((افغان )) یوه بله پښتو منظومه هم راغلی وه چی په زیات اټـــکل یی په مولوي صالح محمد اړه د رلوده ۰ د سربیت یی داو :
خه احوال دی پر دنیا
عبرت واخله اې دانـــا
په دې توګه هغه مهال په سراج الاخبارکی زیاتره خبرید ونکو شعرونو په صالح محمد کندهاري اړه درلوده او د هیواد په مطبوعاتو کی لومړ ي نکاهی ډوله شعریه همده پورې اړه لــــري

چې دهماغه کال ( ۱۲۹۳ ) دلیندۍ په دیرشمه گڼه کې چاپ شوی دی او هغه په دې ډول پیل کیږي :

په کابل کې چې استیږي، باربه وړي دصندلي
که له لوږې هلاکیږې، غم به خوري دصندلۍ

مولوي صالح محمد له سراج الاخبار سره پر تېنګې همکارۍ سربیره دخپلې ملي ژبې دپرمختیا اودود تیاره په تعلیمي برخه کې هم له هیڅ راز هاندوهڅې څخه نه ژغوره اوبه هماغه سراجیه دوره کې یې چې پښتو لومړی ځل په تعلیمي نصاب کې ورګډه شوه، هم دپښتو لوست کتابونه کښل او هم یې دښوونکې په توګه دهغې تدریس کاوه . په هماغو شپو ورځو کې چې دغه تکړه پښتو شاعر، لیکونکی او ښوونکی دکابل له ساړه ژمي څخه سرټکاوه . دافغانستان په بهرنیو اړیکو کې ستریدلونونه رامنځ ته شول . لومړۍ نړیواله جګړه پیل شوې وه، انګریزانو دې ویرې څخه چې عثمانیه دولت دآلمان او او تریش سره ددوی پر ضد ملاتړلې وه . دهند دوایسرای له لارې دافغانستان امیرته داسې له غوږه تیره کړې وه چې :

(( دلته دجهاد خبره نشته برتانیا دنړۍ دمسلمانانو ترټولو ستردوست او ځواک دی ! ))

او داهیله یې تري کړې وه چې له خپلې ژمنې سره سمه خپله بې پلوي دپخواغوندې تېنګه وساتي . ځکه دسراج الاخبارله لیکنو څخه لږ و ډېره داسې څرګندیده چې دعثمانیه دولت پرخوا دی او دا دبرتانیې هند حکومت ته ګرانه پریوته . همدغسې یو څرپر سیاسي اکر( حالت ) و، چې د ۱۹۱٦ کال داپریل پر شپاړسمه داخبار په ۲٦ ګڼه کې دصالح محمد کندهاري یو شعر چاپ شو او سم دم یې انګریزان وبوږنول او هغه داو :

| | |
|---|---|
| ته کره دحمکې ګوره | نظر وکه زما ور و ره |
| دنیاده پر شورراغلی | توریدلی قهریدلی |
| لوی دول چې پر دنیا دي | پریوروپ که پر ایشیا دي |
| ټول په جنګ سره اخته دي | په سرو وینو اغشته دي |
| جرمن دې خدای ګمارلی | روس، انګریزته شکارلی |
| انګریزان په ویراخته دي | ډیر مغموم خورا خپه دي |
| همت ګوره دتورکانو | درومیانو عثمانیانو |
| ښه فرصت دې خدای راکړی | ښه موقع دی پیدا کړې |
| چې کفارسره اخته دي | په سرو وینو اغشته دي |
| شکر یې وکی چې شی زیاد | کافران ټول شي برباد |

دا د وییزه (مثنوي) ټوله او یا بیته وه او کله یې چې انګلیسي ژباړه انګریزانو ته ورسیده سیاسي اګر یې پربله شو. او س په دغه باب د هند په ملي ارشیف کې د هند دوایسرای او د افغانستان دامیر ردوبدل شوي لیکونه خوندي دي د هغوي له ډ کې د ۱۹۱۵ کال د مې د شپږمې نیټې یو لیك چې د صوبه سرحد چیف کمیشنر سرروس کپل د برتانیې هند سکرتري ته لیږل شوی دی په دې مضمون دی: یوه تن صالح محمد نومي د کابل له شاهي ښوونځي څخه داسې یو شعر چاپ کړی دی چې خدای المان دانګریز پرضد را پارولی دی. څنګه چې شعر په پښتو دی او په سرحد کې یې خپریدل خطر لري نو انګریزي ژباړه یې رالیږل شویده. په کار دي د برتانیې هند په اوېچه کې د سراج الاخبار دا پریل ۱۶ مې ګڼې ته د خپریدو اجازه ورنکړ شي. انګریزي واکمنان په تونس شول. فارن سکرتري د سې. ای. ډي (استخباراتو) مشر سرچارلس کلیفلند وکتل چې د سراج الاخبار سرلیکونکی دامیر ورمونه ده دي منلی او بیا یې هماغه پخوانۍ لیار نیولی ده. هغه ورته په ځواب لیکلي وو چې د هغه په ګروهه د افغانستان امیر د برتانیې پرضد د خپل ملت لاس نه نیسي. هغه وو چې مولابخش نومي سړي ته لار ښوونه کیږي چې د شعر انګریزي ژباړه وګوري او تصدیق یې کړي او نتیجه یې دا شوه چې وایسرای امیر ته دمې پرشلمه یو شکایت لیك راواستاوه اوترې یې وغوښتل چې د سراج الاخبار زیږه لهجه دې سمه شي، او امیر ورته د جون پر دویمه لیکلي ځواب ورکوي چې د اخبار مدیر ته دغه یادونه شویده.

نورنو په سراج الاخبار کې تر یوه کاله پورې د صالح محمد شعرونه خپاره نه شول.

د همدغه کال د سپتمبر پر اوویشتمه د هنیتنګ فون په سیاسي مشرۍ او نیدرمایر په نظامي مشرۍ یو آلماني هیأت کابل ته راغی، سراج الاخباران د داسې یوه ستر خبر د خپرولو توان هم نه درلود. له دغه هیأت سره د هندرا پرتاب او مولوي برکت الله غوندې هندي آزادۍ غوښتونکو مشران او عثماني استازي کاظم بیك هم ملګري وو.

د ۱۹۱۶ د جنورۍ په ۲۴ مه د افغانستان او هغه هیأت ترمنځ یو تړون لاسلیك شو په با بر بڼ کې د آلماني، عثماني او هندي آزادي غوښتونکو د هیأت څومیاشتې استوګنې پر سراج الاخبار زیات بندیزونه راوستل.

همدغه مهال ؤ چې یوه بل پښتو شاعر د مولوي صالح محمد پرځای میدان ته راودانګل او هغه غلام محی الدین افغان و. د ده لومړي پښتو شعر د ۱۲۹۴ د ثور په لسمه ګڼه کې چاپ شوچې لومړي بیتونه یې دا دي:

زړه زما ټوك دی له مینې دوطن

خپل وطن ماته عزیز دی له خپل تن

هر یو گل می دوطن پرما نه پرگران دی
ترکشمیره، تر یاریسه ترلنــــــدن

د هماغه کال دتلی په اتلسمه گڼه کې یې یوه بولله داسې پیل موی :

امید مکړه چې همیشه به یې خوشال
په دنیاکې دی هرڅه لره زوال

او دمرغوس په یوه گڼه کې یې یو غزل چاپیږي چې وایی :

په عالم کې څه غوغاده نه پوهیږم
چې دروغ ده که رښتیاده نه پوهیږم

محمود طرزي او همکارانو یې کلاسیک پښتو ادب هم له پامه نه غورځاوه اود ۱۲۹۴ کال دتلی په اتلسمه گڼه کې یې دخوشال خان پیژندگلوي اوپښتو اودري شعرونـــــه خپروي .

د لومړي نړیوال جنگ خبرونو دسراج الاخبارلیکوال او لوستونکی راپارولي وو اومحمود طرزي ته دغلام محی الدین ددغه شعر چا پول کیدونی ویریښیدل :

زما زړه له وینو ډک دی بیقرار
نن ستم دکافرانوشو بسیـــــــار

پر دغه کال دوړي دشلمی نیټی په گڼه کې دپښتو وندوه بنه تراخرگنده شوه اود ذا ورځنۍ لیکونکی عبدالهادي (داوي) یکی خپل داشعرخپور کړ :

پښتو ژبه ده شیرینـــه
هم فصیحه هم متینـــه

اوپه همدغه گڼه کې محمودطرزي دپښتو ژبې دتدریس پر ار تیایوه لیکنه چاپ کړه . د ه په دغه لیکنه کې پردې زوراچولی دی چې (( باید افغانی ژبه وساتو اوپه سبنت اوپرمختیا کې یې ټینگه هڅه وکړو .)) یوازې افغانی ژبوته نه بلکې دافغان ولس تولولیلابیلوتبرونو ته په کارده چې خپله وطنۍ او ملي ژبه پښتو زده کړي)) محمودطرزي دپوهنې تولنــې (انجمن معارف) ته سپارښتنه کوي چې دپښتود تدریس موضوع په پام کې ونیسي اود هغې دزده کړې لپاره تعلیمی کتابونه جوړ اوچمتو کړي اودفنی او صنعتی کلمو دزده کـــړي لپاره زیار وباسی .

په پای کې وایی :

(( اې دوطن دبڼ نوېو نیالگیو !

خپله ملي افغاني ژبه ونمانځي او مينه ورسره ولري . او په زده کړه کې يې ډېر هاند وکړي ، خپله سياسي او رسمي پارسي ژبه هم په مينه زده کړي )) .

په دې توګه محمود طرزي سره له دې چې د هند وايسراې د افغانستان امير ته ليکونه راليږل خپل غوره مطالب يې چاپ ته سپارل او د خپلې موخې د څرګندونې لپاره يې له هر کيدونه ( امکانه ) ګټه اخيسته . په دې هم بسيا بانه شو او په پای کې يې د (( حي علی الفلاح )) ترسرليک لاندې د برتانيا پر ضد د مرغوبي پرشيار سمه د آزادي غوښتنې پر زوزنده مضمون خپور کړ او خبره دې ځای ته ورسيده چې د امير حکومت د ۱۵ ورځنيو هغه پاڼې ضبط کړې او محمود طرزي دې ته اړ شو د هغې ليکنې پر ځای په نورو ليکنو د جريدې مخونه ډک کړي . تردغې پېښې وروسته د يوې څه مودې لپاره د پښتو ليکو خبرېدنه کوو ته ودرېده چې په دې توګه د ۱۲۹۴ کال په ژمي او وروسته پسرلي کې سراج اللاخبارنه پښتو شعر اوليکنه خپره کړه او نه کوم غوره سياسي مضمون .

له دې سره په سراج الاخبار کې د پښتو د ونډې لومړۍ پړک پای ته ورسيد او متې د ۱۲۹۵ کال د وري د مياشتې پر ۲۹ مه يکې يې د دويم پړک پيل ته لاره اواره شوه .

محمود طرزي او همکارانو يې د ۱۲۹۵ په پسرلي کې د مقصد څرګندونې لپاره دراز راز لارو چارو په لټه کې شول . لومړۍ يې دا څه وکړه چې د صالح محمدخان د شعرونو د بيا چاپولو لپاره د امير ستاينه سريزه کړي او امير يې هيڅ ونه شي ويلای ، چې لومړی نيم بيتي يې دا و :

اطاعت داولی الامر فرض عين دي

د غبرګولي د ۱۳ مې نيټې په ګڼه کې يې د رحمان بابا پر غزل يوه پنځيزه ( مخمس ) خپريږي :

دې پر عمر تمناکوې ترکه !

په همدې وزن يې د سلواغې په ګڼه کې يو غزل چا پيږي :

ته چې زلفې د يار مشک وعنبر بولې

په داچين کې به خطاکوې ترکه ....

د زمري مياشتې په ګڼه کې د خوشال خټک د مستو شعرونو اهزنی ( انتخابات ) خپريدنه موبی لګه :

پښتانه که آدم زاد دي ....

د کابل د عبدالرسول محمدزي يوه بولله د ليهندې د پنځمې نيټې په ګڼه کې له چاپه وتی :

مينه راشه پر سر وارو ه ګلګون ساغر ....

د ۱۲۹۵ کال د وږي د اتمې په ګڼه کې د محی الدين افغان پر غزل د ميرزا عبدالرحيم يو پنځيزه خپريږي .

ویرشنا دخپل مولاکرم چی او طان می خپل دی ۰۰۰
د لیندی د نونسمی نیتی په گڼه کی دملامحمدخان عرض بیگی ( افغانی نویس) داشعر راغلی دي :

افغانستان خلك زمري دي په افکاره شی
خیان دبدو ورته مکر یٔ ؛ نګونساره شی

په همدغه گڼه کی درحمان بابا پرغزل دغلام محی الدین افغان یوه پنځیزه چاپ شوي ده:

څوك چی وزك له خپل وطن دي ۰۰۰۰

او همدارنګه دافغان یو جلا غزل هم ورسره خپور شوي دی چی وایی :

بی کمال دباکمال کله همسردي
هم قیمت کله گوهرسره حجر دي

دلرم د شپږمی نیتی په گڼه کی دافغان هماغه یول یوه بله پنځیزه خپره شوې ده :

جاردي شم ترنامه راشه راشه
په هجران کی یم ناکامه راشه راشه

دمرغومی په شلمه گڼه کی یی یو شعر خپریږ ئ چی دهغه مهال دروښاندومسلمانانو دگروهی ښکارندوي دی :

موز که بنه تعلیم یافته وی دآثار
هم کامل وی دصنعت دکار زار

د ((رویاي صالحه)) ترسرلیك لاندي یی یوه پنځیزه د ۱۲۹٦ دجوزا دشپارسمی نیټی په گڼه کی راوځی :

څه عجبه حوب وچی وچی می ولیده سحر ۰۰۰۰

دپښتو خپرنو په لړ کی دغلام محی الدین افغان فعالیت هم زیاتیږي اود ۱۲۹۵ کال دکب دپنځمی نیتی په گڼه کی ۱۰۴ پښتو متلونه د (( پښتو مشهور متلونه )) ترسرلیك لاندي خپروي ۰ د ۱۲۹٦ کال دوري په ۱۹ مه گڼه کی دافغانستان دپیژندنی په باب یوه لیکنه داسی پیل کړي اوپاي ته رسوي :

(( ۰۰۰ داملك دهندوستان ۰ بلوچستان دایران ۰۰۰)) او(( ۰۰۰ فصاحت او بلاغت نهایت مشهوردي ۰))

او دادی نوژ دژورنالیزم په تاریخ کی دغلام محی الدین له خوا لومړی خپورشوی پښتواعلان :

يو اعلان په پښتو کی

اول مقصد مو داعلان دادی چی زموږ مبارکه ژبه رواج پیداکی او هرڅوك د ې په دې باب کی د ترقئ د پښتو ښه ښه مضامین په افغانی کی ولیکی ، اوپه واپسطه د دې اعلان تولو پښتنو ته خبر ورکوو که څوك زمایا د بل چا د پښتو پرمضامینو ایراد لـــــري ۰ هغه دې خپله مدعا په پښتو ولیکی او د سراج الاخبار مدیرصاحب ته دې راولیږي که بنده د هغه له جوابه عاجزسه ۰ هغه ته به پنځوس روپئ په طور دانعام ورکړم اووعده هم شپږ میاشتی ده ۰)) دسراج الاخبار د شپږم کال ۲۳ مه گڼه ، د ۱۲۹٦ دچنګاښ ۴ امه ۰

د ۱۲۹۵ کال په ژمی کی چی امیرله کابله ژمنی پایتخت جلال آباد ته تللی و ۰ محمود طرزي او همکارانو یوبل زړورگام واخیستاو هغه د (( بلبل گرفتار ) ترسرلیك لاندې د (( پریشان)) ( دعبدالهادي داوي پورنوم ) دیوه شعر چاپول وو ، چی د سلواغی دپنځمی نیتی په گڼه کی خپورشوي و :

سحرگهی بشنیدم زبلبلی به قفس

که مردم ازغم ودرد دلم نپرسدکس ۰۰۰

دغه مست سو د تولو روښاندانو په ور اندې دافغانستان دآزادي غوښتنی ماناد رلوده ترهغی گنی پنځه میاشتی وروسته د ۱۲۹٦ دغبرگولی په دویمه نیټه د (( ادبیات ملی )) ترسرلیـــك لاندې دنوموړي شپږ یزې (مسدس) پښتوژبارړه دمولوي صالح محمد له خوا خپره شوه :

یو سحر زما ترغوږ شو له بلبله ۰۰۰۰

په همدغه گڼه کی د صالح محمد کندهاري یو پښتو لیك چاپ شوی چی دوه ستونـــــــه یی نیولی دي :

( ۰۰۰ اي لوې فاضله اوښه غوښتونکی دوطن ۰۰۰ دا اول پښتو مکتوب دی په خدمـــــــت دسراج الاخبارد رولیږ ه ۰۰۰) ۰

محمود طرزي د ۱۲۹٦ دغبرگولی د دویمی په گڼه کی یو سرلیك ( کلیشه ، په دې ویینو پرانیزي :

(( ادبیات ملی ــ فارسی ــ افغانی ــ هرقوم بزبان خود ، هرزبان به ادبیات خود زنده می ماند ۰))

په وروسی گڼه کی ترهماغی کلیشی لاندې داسی لولو :

(( چنانکه مولوي صالح محمد درمکتوب افغانی بسیارسلیس وروان خود شکه درشماره گذشته سبقت نمود ، فرموده است ۰ درینوقت به هیچ مکتب افغانی خوانده نمی شود ۰ بدست هیچکس کتاب افغانی دیده نمیشود ۰ چنین کتابی هم بافغانی نیست که انسان به درد احتیاج

این زمان استفاده ازان بکند . مگر یك چند دیوان های اشعارێ که انهم
درستا یش محبوب است وبس ! ))
محمود طرزي په همدې ګڼه کی دفارسی او افغانی دخپرونو پروګرام ، د شعرو ولونه ،
دنشرو ولونه او متلونه را مخ ته کوي او په ترځ کی د هزاره ګی ، پنجشیري ، ښاري
کابلی ، کندهارئ هراتی ، ازبکی او نورو ګړو دودو دخپرولو ژمنه کوي او لیکی چی په
افغانی ګړودو به هرډول سندرې او چاربیتی خپرې کړي . سراج الاخبار دغبرګولی
دشپاړسمی په ګڼه کی ترهماغی کلیشی لاندې د سید محسن کندهاري یو شعر
چاپ کړی دی :

پراسمان دعزت لمر دی غوږ یدلی ....

دوزي د هپلسمی په ګڼه کی دعبدالسلام (( قصیده ٔ افغانی )) په دې ډول راغلی ده :

اول حمد دهغه پاك پروردګار دی
چی معز دممکناتو په مقدار دی

د ۱۲۹٦ په متن کی دپښتو شعر یو لاسکښلی غونډ له خپل لیکوال ملا عبدالباقی
کندهاري سره لاسته راغلی ، چی (( تهذیب الواجبات )) نومیږي او دسراج الاخبار
دتلی ، لړم ، مرغومی اوکب په ځینو ګڼو کی ترې اخیستنه کیږي ، لکه :

دپښتو پسخورده نه خورم ....
دوه مسلکه دي په موږ کی ....
نوآموزه پاکه لوحه چی لیکی ....

دوکتور روان فرهادي ( خدمت سراج الاخبار درپیشرفت پښتو) ترسرلیك لاندي
د دغهاخبارد پښتو ونډې په باب دخپلوالواکونو لنډیز او نتیجه ګیري داسی کوي (۲ ٣مخ ) :
دسراج الاخبار ترمنځ ته راتګ اوبه ځانګړي ډول بیاتر(۱۲۹۲ ل) پورې په
افغانستان کی پښتو خپرونوله خولنډ و تنګو دولتی ، دینی رسالواویانبوونلیکونو
( تعلیمنامو ) څخه تیرې نه کاوه چی په یو چاپ سره خپرې شوي وې . سراج الاخبار
دهیواد لومړۍ جریده وه چی دپښتو نظم او نشر دخپرونی په لار کی یې ګام اخیستی
دی . دهغو پښتو شاعرانو او لیکوالو شمیر چی له سراج الاخبارسره یې همکاري درلوده
لږ و . جریده تل دپښتو شاعرانو دښکلو پښتو شعرونو په لټه کی وه . دغی جریدې له
هیواد نه بهر په انګریزي لاسکتوو هیوادواوپه تیره په پېښور او نورو پښتو ژبو سیمو کی
لوستونکی درلودل . له دې کبله دبرتانیې هندحکومت سراج الاخباراودهغه مدیر

دخپلوګټو دښمنان بلل او بیا په تیره داچې هغه ورته په لومړي جهاني جنګ کې دعثمانیه دولت په پلوي سره، دافغانستان دبې پلوۍ مخالف ښکاریدل.

دسراج الاخبارشپږ کلنه پښتو ونډه پر درو پړاو ویشلای شو:

۱ــ دپښتو دموضوع رامخ ته کول د ۱۲۹۱ لمریز کال په سلواغه (د ۱۹۱۳ زیز دي په جنوري) کې.

۲ــ دپښتو خپرونو لومړ ی پـړک په ۱۲۹۳ او ۱۲۹۲ کلونو کې.

۳ــ دپښتو خپرونو دویم پړک په ۱۲۹۵ او ۱۲۹۶ کلونو کې.

او پښتو همکاران یې پدرو ډلو ویشل کیږي:

۱ــ پـرله پسې همکاران: مولوي صالح محمدکندهاری اوغلام محی الدین افغان.

۲ــ لږ پیښنی همکاران: عبدالهادي داوي اوعبدالعلی مستغنی.

۳ــ نور شاعران چې یونیم شعریې چاپ ته سپارل شویدي لکه: ملامحمد عرض بیګی (افغانی نویس). ملاعبدالباقی کندهاري، سید میرمحسن کندهاري، عبدالسلام اوعبدالرسول محمدزی.

دپښتو په باب دمحمود طرزي او نورو همکارانو، یاپه بله وینا دسراج الاخبار الواکونـه (نظریات) په دې ډول لنډ یزموس:

۱ــ پښتو او دري دافغانستان دډیره کیو وګړ وژبې دي اود هیڅ یو قوم ځانګړ ي تـول (مال) نه دی. ددغو دوو ژبو ښېښت او تایید دافغانستان دټولو خلکو دولسوالـی (ناسیو نالیزم) یوه برخه ده.

۲ــ پر دري سر بیره دپښتو ژبې تدریس په ټول افغانستان کې لازم دی.

په امانیه پیـر کې دافغانستان دخپلواکۍ تریبرته اخیستنې اود ولسپالو روښاندانـو (روشنفکرانو) ترسیاسی لاسبري وروسته دپښتو ژبې دادبی پرمختګونو او تدریس پــه برخه کې دنومړو الواکونو اغیزه ښه ترالیدل کیږي.

دځینو ادبی کره کتونکو لهخوا دغه مهال چې پښتو شعر لومړ ی ځل دهیوادیو ې مهالنۍ ((سراج الاخبار)) ته لار پیداکړ ې ده ددغی ژبې د ((اوسنی ادبی پـېر)) پیل بلل شوی دی اوله دې سره سره ډیر بې خونده او پیکه او هغه هم په دې لاسوند چې یې دخوشال، رحمان، حمید ... له ځلاند ((منځنۍ)) ادبی پیر را وروستـــه په دوه نیم سوه کلن ځوړ تیایی واتن پسی سر راپورته کړ ي نوي یې تبې شکولی اوـــه دې توګه له یوې اوږ دې ناروغۍ وروسته دپاڅون او خوځون هڅه کوي!

(کابل مجله ـ د ۱۳۴۱ شپږ مه ګڼــه ۳۹ مخ).

زما په اند دغه راز لنډه تنګه کره کتنه او ارزونه دومره پرځای نه بریښي لومړ ي خــو

د نوي مهال د تولنوال ریالیزم له مخې د ادبي پیرونو ویشنه او برید تاکنه داســـــې اسانه نه ده چې د شخصیتونو او سرسري سیاسي او کولتوري اکرونو ( اوضاعو ) په بدلون سره ترسره کړ شي ، بلکې یوازې او یوازې تولنــو تیــز ( اجتماعي ـ اقتصادي ) بدلونونه کولای شي هغه کیدونې او رښتینې کړي . بله داچې په هغه دونیم سوه کلنه دوره کې ـ چې نوموړ ی یې د پښتو شعروادب یوه (( نزولي )) دوره بولي ، هم سل په سل کیــــــې رښتینې نه بریښي په دغه دوره کې د پیرمحمدکاکړ ، احمد شاه بابا ، شمس الدیـــــن کاکړ ، نجیب او میرزا حنان غوندې پیاوړ ي شاعران تیر شوي چې د دیوانونو خاوندا ن دي .

دا به ومنو چې په سراج الاخبار کې خپاره شوي شعرونه د ومره شعریت نه لري ا و هنري اړ خ یې کمزوري د ی ، مگر دیته هم پاملرنه پکار ده چې دغه شعرونه د مضمــــــون او محتوا او اندومانا له مخې له تیرو هغو سره یوجوت برید جوړ وي یو شعر و ادب چــــې پیړ ۍ پیړ ۍ یې له گل وبلبل ، مینې ، ښکلا ، ستاینو او غندنو ، ویاړ نو اوویرنو پرته نورخــــه دومره نه پیژندل . خنګه وکړ ای شي چې په یو واریز ډول هم شعر شي او هم شعـــار . دا لومړ ۍ هغه وه چې په پښتو کې د نوي سیاسي او تولنیزشعرښنسټ کینبوول شي او هغــه هم تر داسې زندیو او بندیزولاندې چې هر پیاوړ ي شاعراو ادیب پکې برخه اخیستلای هم نه شوه . د سراج الاخبار دوره د نوي ریالستیک پښتو او دري ادب لپاره یوه تمرینــــې او ازماینتي دوره وه . د یوې سیاسي مبارزې د پیل او پاخون دوره وه ، هغه مهال ژمنــو ( متعهدو ) شاعرانو او لیکوالو داهخه درلوده چې خنګه وکړ اې شي دامیر تر ببــــر ې ز یري لاندې خپل تولنیز او سیاسي پیغام خوتنو رو ښاندانو او پرا خو شا ړ و شډ لــو نالیك لوستو پرگنو ته ورسوي . یوه غبرگوني مبارزه روانه وه یو ه خوا له کورنۍ شاهــــي زور واکې اوبل خوا له بهرني بیواکۍ خخه د ژغورنې لپاره . دوخت ژمن درباري شاعــــر دیته اړ و چې په ښکاره امیرته سراج الملـــة والدین ووایي اوبه پټــه کې یې ز ړ ې جر ړ ې نوري هم پسې پستــې او ورستې کړ ي او له دې سره سره یې د بهرنې ساتندوی (( انگریز )) دړا پر ځو نې لپاره کنده وکینې ، داچې وایي : کله کله یو شعار ترزرو شعرونو هــــــم زیات اغیزمن پــریوځي . د سراج الاخبار د هغه مهال پښتو شعرونه هم همـــــدا را ز شعارونه وو چې بر تانیې تولواکنې یې لړ زوله ، چې د صالح محمد کندهاري کو چنـــــې

دوېيزه يې يوه ډېره ښه بېلګه وه ((۰۰۰ انګرېزان به وېراخته دي)) ۰

دسراج الاخبار هماغه شعار ډوله شعرونه اولیکنې وې چې امیر یې له پښتو را وغوڅاوه اود پرمختللي اماني غورځنګ په منځ ته راتلو سره یې انګرېزي ښکیلاکګر نه یوازې زموږ له خاورې پوښناکړ، بلکې ددوه ګونو لویو وچو((اسیا او افریقا)) ارته ځمکه یې پرې هم سور اورکړه ۰

او پښتو شعر و ادب هم پر هغه لومړه ښه نه پاتېږي او دخپل سیاسي پخلي یوه نوې پړاو ته ورګډ یږي ۰

په دیرشمو کلونوکې دوږسي بل سیاسي غورځنګ ((ویښ ځلمیانو)) له منځ ته راتګ سره نور هم پسې وده او پرمختیا مومي او پخیږي او یوه لسیزه وروسته دخلکو دیموکراتیک ګوند له جوړښت ، وروسته دثورملي او دیموکراتیک انقلاب اودهغه له نوي بشپړتیایې پړاو سره دنوي مهال دتولنوال ریالیزم په ګانه ګانل کیږي ۰

هره هنري او ادبي کره کتنه هله رښتینې اوعیني بلل کیدای شي چې دهنرمند او ادیب او دهغو دژوند دمهال او چاپیریال په بام کې ونیسي او ورسره ورسره داتکي چې دخپلې تاریخي استازې په سرته رسولو او دخپلې ټولنې دپراختیا او بشپړتیا په بهیرکې یې خومره اوڅنګه ونډه اخیستې ده ۰

۱ـ بینوا ، عبدالروف : اوسني لیکوال ، لومړنی ټوک ۱۳۴۰ کال ۶۸ـ۷۳ مخونه ۰

۲ـ روان فرهادي : پښتوچاپي آثار ۱۳۵۷، ۱۹ـ۳۲ مخونه ۰

اهدا

ستر افغاني محقق پوهاند عبدالشکور
رشاد ته!

(مؤلف)

۳ـ کابل مجله : د ۱۳۴۱ کال شپږمه گڼه ۳۹ مخ .

۲ـ هیوادمل ، زلمی : فرهنگ زبان وادبیات پښتو ۱۳۵٦ ، ۴۱ مخ .

مخکی ترڅ چی راوانباد غلام محی الدین افغان پر افکارو ور غیزم ، او یا یـــــې آثار د رومیزم غوره بولم ، چی دمتن څیړنی اویامتـــن خپرونی د آرونو او پر نسیونو لــــه مخی یې لومړی ژوند لیک وکاږم ، او دژوند بیلا بیلی خواوې یې درخرګندې کــــړم. نو ځکه زما دغه څیړنه لومړی د ده له ژوند لیکه څخه پیلیږي ، ترڅ وروسته به یــــې آثار د رومیم ، اوبیا به یې دژوند داحوالو آو اثارو دمطالعی په بنا په افکارو وزغیږم :

((۱))

ژوند لیـــک

د سپوږ میږ لیږ دي شمیر له مخی کابو ۱۲۵ کاله دمخه د ۱۲۷۹ هـ ق کال پـــــه شاوخواکی (۱) داحمد شاهی امپراتورۍ دپلازمینی اشرف البلاد (کندهار)(۲) پـــــه پوادب پالونکی غیږ کی دعبدالرشید دنومیحسن خیل جریانـی (؟) پښتون(۳) کور د یوه نوي ماشوم په زوکړې رون شو ، پردغه ماشوم یې نوم غلام محی الدین کښیښود ، اودخپلـــی

---

(۱) په اوسنی لیکوال (لومړي توك ۶۸مخ د ۱۳۴۰ش کال چاپ) کی یې د ده دزوکړې نیټه ۱۳۰۹ هـ ق شوولی ده . دغه نیټه‌سمه نه ده ، اوکه یې سمه وبولو نو شاعربایــــد په ۳۰ کلنۍ کی مړ وي . حال داچی دی په دیرش کلنۍ کی د هند په لتوکی دبوهـــی او کمال په حاصلولوبوخت و .

(۲) میرغلام‌محمدغبارپه خپل کتاب((افغانستان در مسیر تاریخ)) ۷۱۹ مخ کی‌غلام‌محی الدین خان افغان له سرحدي افغانانو پهللی دی . دغه خبره سمه نه ده ، او د دغه کتـــا ب دیـــرو نورو تیروتنو په څیر به یې یوه تیروتنه وبولو .

(۳) پښتانه شعراء ، ج ۳ ص ۴۷۷ د ۱۳۴۲هـ ش کال چاپ ، کابل ـ پښتوټولنه . د ده دنسب په باب مادلی ځکه نورتحقیقات ونه کړل ، چی فاضل استاد پوهاندرشاد په دې برخـــه کی څیړنه کوي ، اودافغان یاد په مجموعه کی خپریږي . دقبیلی دغی نوم چی په پښتانــــه شعراء کی جریانی چاپ شوی ، بنایی جمریانـــی ( ژمریانـــی ) وي ، چی د تاریخ خورشیـــد - جهان په ۲۰۰ مخ کی د ((ګاسی)) په‌اولاد کی شمیرل شوید ی او یابنایی زه غلط یم ، اوجریانی سهی وي . په هرصورت په دې خصوص کی بلنی څیړنی دفاضل استاد پو هاندرشـــاد په برخه دي .

کورنۍ په توده غېږ کې رالوئ شو. کله چې دلیك لوست د زده کړې شوق نو یې خپلې ابتدایي زده کړې د کندهار په علمي چاپیریال کې پیل کړې، اودبو هي یوه تونسه یې زموږ له دغه پښتني فرهنګي مرکزه څخه په برخه شوه. دیادولووړ ده چې افغانستان په کندهار کې مروج او متداول علوم له دیني علومو سره یوځای ولوستل.

غلام محی الدین د ۱۹ کالونیو و، چې خپل پلرنی ټاټوبی یې پرېښود (۴) اوهند خواته ولاړ. دپخواني هند دلاهور اوراولپنډۍ (دغه دوه ښاره اوس په پاکستان کې شامل دي) په عصري مکاتبو کې علمي زده کړې پیل کړې، دمروجو دیني علومو ترڅنګه یې عصري علوم هم ولوستل، او خوږبي یې زده کړې چې دخپلې وینا له مخې یې له خپلې مورنۍ ژبې (پښتو) سربېره پر پارسي او نورو ژبو هم لیك لوست کولای شوای، په دې باب دده خپله وینا داده:

| | |
|---|---|
| ستا خو هم څه زده دي پاته هسې یې پښتون | بیا راته ګویان سوه غه ځوان په دې مضمون |
| زه یم له هغو نه یوادني سري کړمون | ماویل چې پښتانه خودي په علم کې جیحون |

په اته ژبو پوهېږم درته وایم مختصر

| | |
|---|---|
| عربي او انګریزي خو هم پوهېږم په ظاهر | یعنې په پښتو او په هندي کې یم ماهر |
| په اردو او په پارسي کې یاره زه یم محرر | ګورمکهي او شاستري ته په ښه شان یمه حاضر |

نور علوم هم رامعلوم دي برادره ماش قدر (۵)

غلام محی الدین شپږ ویشت کاله د پخواني هند په زمکو او د صوبه سرحد او بلوچستان په پښتني سیمو کې وګرځید، او د ۱۳۲۴ هـ ق کال په شاوخواکې بېرته کابل ته راغی، او دده د ژوند یوه نوې دوره پیل شوه.

ده له دغه مهاله د مرګ ترورځې پورې خپل وطن، خپل ملت او قوم، خپلې ژبې او فرهنګ ته ډېر ډېر کارونه وکړل، چې دده دې خیرنې په بېلابېلو برخو به وروانده خبرې وشي.

دي چې بېرته خپل هیواد ته راغی دهیواد په ملي، ادبي، اجتماعي او فرهنګي حلقو کې یې ډېر ښه هرکلی وشو. په ((خانصاحب)) یې شهرت حاصل کړ، او چې لیك به یې کاوه، نو یې له خپل نامه سره ((افغان)) د تخلص په توګه کښه.

---

(۴) دده دمهاجرت او ټاټوبي پرېښودونې په باب به په راتلونکو بحثونو کې خبرې وکړم.

(۵) سراج الاخبار ۶ کال ۲۱ ګڼه

**افغان او دهیواد دبچیانو روزنه :**

دپښتانه شعراء ددریم ټوك د ۷۷۵ مخ دکښنو له مخې : کلـه چې مرحوم افغـا ن بیرته هیوادته راستون شو ، نوبې دې ته دکابل دښار په ښوونځیوکي دممتحن دکفیـل وظیفه وروسپارله ٠خو دغه وظیفه وروسته په لوړو فرهنګي وظیفو اړیش شوه، چې په دې برخه کي (( دافغانستان دمعارف دتاریخ )) کښني هم دهیرولونه دي ٠ ددغه کتـا ب موء لفینو کښلي دي : (( لومړنی دارالمعلمین دامیرحبیب الله خان په عصرکـــی په ۱۲۹۱ هـ شکال دچوب فروشي په مدرسه کي تاء سیس شو ٠ سردارعنایت الله خـا ن معینه السلطنه ته دمعارف چارې وردغاړې اوښاغلی غلام محی الدین چې په خانصاحب مشهورو ٠ دهغه ښوونځي اداري او تدریس چارې اداره کولی )) ٠بې ځاي کاږ ي — دتدریس هیئت دالاندې محترم کسان وو : (( مرحوم قاري عبدالله خان ملك الشعرا ٠ مولوي عبدالرب، قاري سمرقندي، سیمحمد طاهر، او مولوي غلام محی الدیـــن او محمد جعفر )) (۶)

وایې چې : افغان په ۱۳۳۳ هـ ق کال دحبیبیې دبیت العلوم مفتش، (۷) اوبه — ۱۳۳۴ هـ ق کال په دارالمعلمین کي ښوونکی وو ٠

دپښتانه شعراء په دریم ټوك کي یې کښلي، چې (( افغان )) د ۱۳۳۷ هـ ق راپه دې خوا داعلیحضرت امان الله خان ( ۱۳۳۷ـ۱۳۴۷ هـ ق ) په وختو کي د دارالمعلمین — مدیرو، مګر استاد عبدالهادي داوي په یوه لیك کي کښلي دي : (( دامان الله شـاه دسلطنت په اوایلو کې مرحوم غلام محی الدین خان دکابل دښهر دمکاتب ابتدائیـــه رئیس مقرر شو )) (۸) مګر دوفات خبرې چې په امان افغان کي خپورشوي، دپښتانه شعراء دلیکني موء یددی، اوپه دغه وخت کي ( دامانی عصر اوایل ) دې د دارالمعلمیـــن مدیر معرفی کوي، مګر داچې خبره ښه روښانه شو ې وي، دې ته اړه لیدل کیږي، چـې دهغه مهال دمعارفو په تشکیلاتو سرې ځان خبر کړ ي ٠ دامانی عصردافغانستان داساسی تشکیلاتو دنظامی ۴۸ ماده وایې : (( ریاست دتدریسات ابتدائیه او تالیه مامور دي، له پاره دادارهٔ اونګرانی دټولومخصوصومکتبو دابتدائیه او تالیه او همداس شان ماموردې له پاره دنګرانی او ادارهٔ دهغو خصوص مکتبوچې دنغریو اوټولنواووطنی شرکتوله خـــوا

---

(۶) دافغانستان دمعارف تاریخ ۱۱۵ـ۱۱۶ مخونه، لیکوالان : پاینده محمـــد زهیر، اوسید محمد یوسف علمي د ۱۳۳۹ شکال ـ دکابل چاپ ٠

(۷) پهٔ افغانستان درمسیرتاریخ )) ۷۱۹ مخ کې یې کښلي دي : (( معلم مکتب حبیبیه ))

(۸) دافغان یاد، ۱ مخ ، داستاد داوي لیك ٠

اداره اوجوړیږي، او دغه رنګه دارالمعلمینونه او دارالمعلماتونه هم په ریاست تدریسات پورې تعلق لري ۰ یورئیس هغه اداره کوي)) (۹) ۰

دقانون دغه ماده موضوع ته روښانوي او داترې زبادیږي، چې داستاد دا وي، او پښتانه شعراء دواړو خبرې سمې دي ځکه چې دارالمعلمین هم په دې ریاست پورې اړه درلوده ۰ له لوړه بیانه څرګندیږي، چې مرحوم افغان له ۱۳۲۴ـ۱۳۳۹ هـ ق پورې د هیواد په تعلیمي موء سسو کې د ښوونکي، پلټونکي، مدیر او رئیس په رتبو کارکړي دی اوپه دې ۱۴ یا ۱۵ کالوکې به یې د وطن ډیرو بچیانو ته دعلم او پوهې فیض وربه برخه شوی وي ۰

افغان او فرهنګي هڅې :

افغان دکابل په تعلیمي موء سسو کې دوطن دبچیانو دروزنې ترڅنګه دوخت په مروجو علومو کې هم ژوره مطالعه درلوده ۰ له پښتو، پارسي، عربي او اردو ادبه سره هم ترزیاتې اندازې بلدو ۰ په پښتو اوپارسي یې کښلي درلودې، پښتو اشعار یې ویل، اوپه پارسي ژبه کې یې هم قلم چلاوه، اودخپلې وینالې مخې د ((اردو)) محرورهم و ۰ ښایي اردو لیکنې یې هم کړې وي، چې دهغه وخت دهندوستان په اردو ژبو خپرونو کې به خپرې شوې وي، او سملاسي یې ماته پته نشته ۰ ددده دفرهنګي هڅوڅرك دمحمود طرزي له دغې لاندې لیکنې هم ایستل کیدای شي ۰ نوموړي دسراج الاخبار د ٦ کال د ۲۲ ګڼې په ۱۰ مخ کې کښلي دي : ((۰۰۰ درین خصوص بالخاصه امید واریم که در بارهٔ ادبیات افغانی داریم، به قلم شیرین رقم وباقریحهٔ باحب وطن توام جنابان مولوي غلام محی الدین خان ومولوي صالح محمدخان وملامحمد خان عرضبیګی داریم که قسم افغانی جریده وطنیهٔ شانرادایماً به دررغرر تحریرات ادبیانه ونشرونظم فاضلانهٔ خودشان احیاء کرده اند)) (۱۰) له دې لیکنې ښکاري چې دهغه وخت فرهنګي او نشراتي موسسو هم دافغان ادبي او فرهنګي هڅو ته زیاته اړه درلوده اوډیره هیله یې ترې کیده ۰

---

(۹) نظامنامه دتشکیلات اساسی (پښتومتن) ۲۵مخ، د ۱۳۰٦ش کال دشرکت رفیق دمطبعې چاپ.پارسی متن ۱۸مخ، د ۱۳۰۲ش کال ددلو ۱۵، دوزیرانودعالي مجلس دتحریراتو داداري دمطبعې چاپ ۰

(۱۰) مقالات محمود طرزي، ص۷۸۸ـ۷۸۹، داستاد دوکتورروان فرهادي ټولونه د ۱۳۵۵ش کال چاپ دبیهقي کتاب چاپولو موء سسه ۰

د مولوي غلام محی الدین خان افغان دغه ډول هڅو ښایي ډېر زیات منظوم او مشهور آثار رامنځ ته کړي وي، چې د یوه لړ برخه یې اوس زموږ په واك کې ده . او په راتلونکو بحثونو کې به پرې خبرې وکړم .

افغان او نوې نومونې :

په ژبه او ادب کې د رأی څښتنان په دې عقیده دي، چې لومړی تر هرڅه باید د یوې ژبې ویونکي دا هڅه وکړي، چې د خپلې ژبې ډېر سوچه او نادر لغات سره راټول کړي، بیا یې په قاموسونو کې خوندي کړي، او که د کوم ویي د پاره په خپله ژبه کې لغت مېند نه شو، نو په هغه صورت کې د نوي لغت وضع کول، او یا جوړول، او همدارنګه د نوي تمدن د نووشیانو له پاره د پښتو ژبې له آرونو سره سم د نومونو اېښوول په ګټه او علمي کار دي . د دغسې نومونو وضع باید د نوې ژبپوهنې پر اساساتو او ایتمولوژیکو قوانینو برابره وي (۱۱) .

په پښتو کې د نویو نومونو (اصطلاحاتو) وضع لرغونې سابقه لري . د امیر شیرعلي خان د امارت په دوهمه دوره (۱۲۸۵ــ۱۲۹۶ هـ ق) کې د عسکري قواعدو او بولیو ځینې خاصې نومونې په پښتو شوې (۱۲)، او دغه کار ترامانی دورې پورې پر له نغښتي پسې وشو .

(۱۱) د پښتو نوي علمي اصطلاحات به څنګه وي ؟ د لوی استاد پوهاند حبیبي مقاله، وږمه د ۱۳۴۸ ش کال ۲ــ۵ ګڼه ۱ــ۲ مخونه .

(۱۲) د امیر شیرعلي خان په وخت کې د دغسې نومونو یا د عسکري قواعدو درې پښتو کتابونه چاپ شوي دي، چې پارسي تشریحات هم لري، او له انګریزي ژبې څخه ژباړل شوي دي (ژباړنه، د ښاغلي رفیع ناچاپ اثر) د امیرعبدالرحمن (۱۲۹۶ــ۱۳۱۹ هـ ق) امیرحبیب الله (۱۳۱۹ــ۱۳۳۷ هـ ق) اعلیحضرت امان الله خان غازي (۱۳۳۷ ــ ۱۳۴۷ هـ ق) په زمانو کې هم د عسکري بولیو او قواعدو د پښتو کولو هڅې شوې دي، او مستقل پښتو کتابونه پر کښل شوي دي . چې تفصیل یې زما له موضوع سره اړه نه لري، او محترم محقق ښاغلي رفیع په ژباړنه نومي کتاب کې په دې باب ډېر مواد راټول کړي دي .

یادونه : د پښتو ځانتني ادب او موسیقي نومي کتاب د ۸ مخ په حاشیه کې د امیر عبدالرحمن د پاچهۍ د دورې ارقام د چاپ په وخت کې د حروف چینانو د بې پروایۍ په اثر وړاندې وروسته وحتی غلط شوي دي .

او په امانی‌عصرکی پښتومرکی به د ې برخه کی پراخ گامونه‌اوچت کړل (۱۳) ۰وروستــــه چی د پښتو د بیاوړ تیا اوپرمختیاله پاره د پښتنولـخوا منظم کارونه پیل شول ځینــــو دعلمی اوځینو هم دځېلوعنــدي غیرعلمی آرونوپر بنادې کارته هڅه وکړه، چـــی د تولو په‌تفصیل سره بیانول د دې مقالی کارنه دي، البته دومره ویل به‌کاردي کـــــه چیری د نویو اصطلاحاتو وضع دباصلاحیته کسانوله خوا دژبی له بنستیزو ارزښتو نـو او ریښه یی قوانینو سره برابره وي ،نوبه دادژبی به گټه کاروي ۰

زموږ لیکوال اوشاعرغلام محی الدین‌افغان چی دخپلی ژبی سره اورنۍ مینــــه درلوده ۰ دخپل کاریه ساحه (معارف ) کی یی‌دنورو داصطلاحاتو (نومونو ) رواجـــول بنه نه ایسیدل نویی‌به همدې نیامت دځپل‌دلوبی له پاره په ۱۳۳۰ هـ ق کال ځینـــی پښتو اصطلاحات وضع کړل ، لکه :

تـــیر = گول

وروال = گول کیپر

فاروړد = مخکینـــی (۱۴) ۰

بنایی ده دغسی نوړد یوه‌زړه پوری اصطلاحات وضع کړي وي، چی تراوسه‌موږ په نه یو خبر۰ دافغان له‌دغسی کارونو څرگندیږي چی دی دخپلی مورنۍ ژبی اساسی ریړوته متوجه و، اوپه دې هم باوري وو چی دنوي مدنیت وړانگی‌به هرومرو زموږ وطن روښوي، اودغـــــه مدنیت په‌نوي اصطلاحات هم‌لـځانه سره راوړي ، چی درواجیدلو په صورت کی‌یې بیاله ژبــی ایستل گران کاروي ۰ په‌همدې اساس‌دي دې موضوع‌ته ځیروو، چی نوي اصطلاحـــــات باید له‌تعـــمیم دمخه پښتو شی ۰

---

(۱۳) دامانی عصر ((د پښتو مرکـــه)) نومی موٴسس لـــــه خوا په چاپ‌شووکتابوکـــی یو کتاب یوازینــــۍ پښتــــــو دي ،چــــی ۱۵۲ مخــــه پــــــه ۱۳۰۱ هـ ش‌کـــال پــــه کابل کـــی چاپ شـــــوي دي ۰ پــــــــه دې کـــتاب‌کـــی‌هــــم دوخت لـــــه غو ښتنی ســـــره ســم نـــــوي لغتونـــــــه دپښـــتو مــــــرکـــــــی لـــــه خـــوا وضـــع شـــوي دي (وگــوري" ! پښتـــو روزنـــــه ، داستاد بینـــوا ص ۱۴۸ ، ۱۳۵۷ ش کال ) ۰

(۱۴) پښتانه شعرا ۰ ج ۳ ص ۷۷۸ ۰

## افغان او پښتو او پښتنواله :

په پښتني کلتورکي دغه دوې کلمې بېلابېل تعابير لري ، او هرتعبير يې د هرپښتون له پاره ويار من او متبرك دي ، اوپښتانه چې په هرځاى کې استوګن دي دوې له خپلې پښتو نه دي تېزاويا په بله وينا پښتو او پښتنواله نه شي پرېښوداي (۱۵) ، زموږ افغان هم خپله دغه پښتني خاصه له وطن څخه له لېرېوالي نېولي د مرګ ترورځې پورې ساتلې وه . افغان که په ايران کې ؤ ، او يا په هند کې خپل پښتني خصايص يې نه ؤ هير .

زموږ دغه مرحوم شاعر اوليکوال هم په پښتو او پښتني ځانګړ نوميو ؤ ، وايې چې : ((تول عمر به يې ملي کالي اغوستل ، اودغربي طرز لباسونه يې بدليدل ، اوخپله خاميتيايي د برد و ترزږ پښتو ورته بنه وه)) (۱۶) .

سربېره پردې د ی له خپلو خلکو سره محشور سړ ی ؤ . د ده کور له په هروخت له ميلمنو ډکه وه ، اوله هرچاسره يې د پښتنوالي د اصولو له مخې ښه رويه درلوده .

استاد داوي ليکي چې : ((مرحوم افغان د پښتو د ترقۍ کلك طرفدار ؤ)) . اواستاد بېنوا په اوسنۍ ليکوال کې د ده د پښتو پالنې په باب کښلي دي : ((غلام محی الدين خان له هغو بوهانو څخه ؤ ، چې په کابل کې يې لومړ ی پلا د پښتو دارتقا تحريك شروع کړي ؤ . ... په خپلو وروستيو وصاياوو کې يې شاګردانو ته داويلي وو ، چې دوى به په پښتو ژبه ژوند کوي ...)) (۱۷) .

د ده د پښتنې مينې او پښتنوالي د ځرګندوی په توګه د ده ، هغه پښتو اعلان هم د توجه اوخاصې پاملرنې ور دي ، چې د سراج الاخبار افغانيه د ٦ کال د ۲۳ ګڼې په ۴ مخ کې خپور شوی دی : ((اول مقصد مو داعلان دا دی چې زموږ مبارکه ژبه رواج پيدا کی ، او هرڅوك دې په باب کې د ترقی د پښتو ښه ښه مضامين په افغانی کی وليکی ، او په واسطه د دې اعلان تولو پښتنو ته خبر ورکوم . که څوك زما يادبل چا د پښتو په مضامينو ايراد لري . هغه دې خپله مدعا په پښتو کی وليکی ، او د سراج الاخبار مد يوصاحب ته دې راوليږي . که بنده د هغه لجوابه عاجز سه ، هغه ته به پنځوس روپۍ په طور د انعام ورکړم اووعده هم شېږمياشتی ده)) .

---

(۱۵) درنه پښتو د پروفيسور پريشان ختېك ص ۱٦ ، د ۱۹۷۸ ع کال چاپ ، پښتو اکېډمي — پېښور .

(۱٦) پښتانه شعراء ، ج ۳ ص ۷۷۴ — ۷۷۵ .

(۱۷) اوسنی ليکوال ج ۱ ص ٦٨ ، د ۱۳۴۰ ش کال چاپ ، کابل .

وگوری ! چې دغه اعلان څومره له پښتنې احساساتو ډك دي ، اوله پښتنو او پښتنوالی سره ددې دمینې څرګندوي ، او دپښتو دترقی له پاره ددې دارماني زړه یوه کړیکه ده .

## دافغان شخصي ژوند :

په خپل وطن ، خپلو خلکو او خپلې ژبې دغه مین پښتون دژوند تر پایه پوری ولکه کر ، او څرګند ژوند یې تراوه . په کابل کې یې دشورباراز دبراچه وو په سرای کی کیږي . چې تل په یې له ملګرو ، دوستانو او شاګرد انو ډکوه . ده خپل عمر دعلومو په زده کره ، دنورو ژبو په زده کړه ، سیاسی مبارزه ، خپلې ژبې ته دخدمت او د وطن دبچیانو په روزنه تیرکړ ، څوك تری یاته نه شول ، او خپل ژوند یې وطن ، ژبې او خلکو ته دخدمت په لاره کی پای ته ورساوه . خو دغه خدمتونه به یې زموږ د ادب په تاریخ او ملی تاریخ کی تل پاته وي ، او نوم به یې ژوندي ساتی .

## مړینه او مزار :

زما په عقیده ددې دمړینې دپیښې په باب ترټولو ماخذ په ((امان افغان)) کې هغه خبور شوي لیك دنږیات اهمیت وړدي ، چې ددارالمعلمین د سرکاتب محمد جعفر په قلم کښل شوي دي ، زه هغه مکتوب دلې کټ مټ را اخلم :

((مکتوب : ضیاع افسوسناك : جناب مولوي غلام محی الدین خان افغان مدیر دارالمعلمین که خودرا یګانه فدایی ملت افغان قرارداده ، همیشه فداکاري راه ترقی وملت که فوزوسعادت ابدي میدانستند وخدمات نمایان وشایانی درمعارف ابراز نموده ، چه همینقدر معلمین که درمکاتب ابتدائیه خطه مقدسه وطن شرف ملازمت دارند . اکثر بلکه انها تربیت یافته دست اخلاص اساس شان است . که از دارالمعلمین به مفاخرت تعلیمیه اولاد وطن ممتاز گردیده اند . جناب موصوف زبان افغانی ، عربی ، فارسی اردو ، پنجابی ، انگریزي ، گورمکهی ، شاستري وغیره را بدرجه کمال دارابوده ، چند کتب مفیده را جهت یادگار تالیف وترجمه کردند . علاوه برهمه اوصاف وکمالاتیکه داشتند ، مدت سی سال مجلس افغانی (افغان کلب) را درهند وغیره ریاست واداره کرده بودند . بتاریخ یوم چهارشنبه ۱۲ برج اسد سنه ۱۳۰۰ به دوبجه یوم مذکور به حکم ((ولکل اجل کتاب)) روزنامچه حیات شان بانجام رسیده واز دست ساقی ((قل یتوفی کم ، ملك الموت الذی وکل بکم)) به مرض هیضه شربت ممات چشیدند ، و محنت اباد دنیای غدار را ترك وبه عشرت سرای دارالقرار رحل اقامت نمودند :




دنیا بهشت ورحمت پروردگار یافت

باساکنان عالم علوی قرار یافت

(انا لله وانا الیه راجعون)

فردای آن روز پنجشنبه جناب جلالتماب وزیرصاحب معارف درشیوهٔ الطاف خاصیکه دربارهٔ خدام مخلص دولت وملت دارند ویگانه خیال نیکوفال شان معارف افزایی است. جهت تسلیت خاطر معلمین وطلبهٔ مدیر مرده تشریف اورده علاوه برتسلی بخشی چند نفر حفاظ جید را بوجوهات نقد خورسند ساخته جهت ختم کلام مجید وفرقان حمید بارواح مرحومی گماشته دووقته طعام وناشتای صبح وغیره مصارف واسایش لازمه به بسیار خوبی ودرستی مقرر داشته، که عرصهٔ سه روز بالای مقبره مصروف ختم کلام وطالب مغفرت باشند، از درگاه خداوند بی زوال اولاً بقای اعلیحضرت غازی (امان الله) را طلبگارم که از فرط رحمدلی ورعیت پروری بنابر قناعیت وخوشدلی رعایای شاهانهٔ خود چنین سرپرستان خلیق وشفیق مامور ومقرر فرموده اند که بعد از مرگ نیز درآرامی وخوشحالی شان صرف مساعی می نمایند. ثانیاً از بارگاه حضرت رحمان برای مرحومی طالب بخشش وغفران میکنم، فقط. مورخهٔ شنبه ۱۵ برج اسد سنه ۱۳۰۰ محمد جعفر سرکاتب دارالمعلمین)) (۱۸).

یوه جالبه نکته چی په امان افغان کی له دغه لوړ خپاره شوي مکتوبه راوځی داده چی ددهٔ دمزار پر کتیبه دده دمړینې ورځ چهارشنبه داسد ۱۱ نیوول شوې حال داچی لوړ مکتوب دا رانبیی چی دغه ورځ داسد ۱۲ وه، او ددې نیټې دصحت پل دلیل دادي، چی نوموړي محمد جعفر خپل مکتوب دشنبی په ورځ داسد په ۱۵ کښلی دي، چی په حساب دچهارشنبې ورځ دهماغی میاشتی ۱۲ کیږي نه ۱۱. په پښتانه شعراء دریم توک (۷۷٦ مخ) او اوسنی لیکوال لومړي توک ۷۲ مخ کی دمرحوم افغان دمزاد کتیبې نقل رااخیستل شوی دی، چی دمړینې ورځ یې چهارشنبه داسد ۱۱ رابنیی.

مرحوم افغان شبیته کاله عمروکړ، چی زیاته برخه یې وطن اووطن زامنو ته په خدمت، تألیف ترجمه، مبارزه اوزده کړه کی تیره شوې ده.

---

(۱۸) امان افغان، دوهم کال ۱۳۰۰ ۱۰ اګڼه

ص ۲ـ ۳۰ دسنبلی ۱

پښتانه شعراء دریم توك کی راغلی دي، چی له امان افغان سره بیره د بجنور (۱۹)
په مدینه نومی اخبار د لاهور په سیاست او زمیندار اخبارونو، دامرتسر په اهل سنت
وجماعت اخبارو کی د ده د مړینی خبرونه خپاره شوي وو، او ډیری مرثیی او سانـدی
پسی ویلی شوې وې. د یوې عربی مرثیی څو بیته پی پښتانه شعراء (۲۰)، راخیستی دي.
دغه عربی مرثیه په هندوستان کی ویل شوې وه.

له دغو اسنادو څخه ښکاري چی د افغان مړینی د افغانستان، سرحدي سیمو
او هند علمی او ادبی محافل ویومن کړي وو، او د ده مړینی په منطقه کی ډیر زیات
اغیز ښندلی و.

## مزار:

په پښتانه شعراء کی کښل شوي دي: ((د افغان مړي د (محوان افغان) له خوا د کابل
د (جوبی) په هدیره کی تقریباً د کاسه برج لمنی ته ښخ کړ شو، پرهدیره پی یوښخه
متره خلی د حزبی ملګرو له خوا د اعانی په صورت د ده د خدماتو د یادګاره نامه جوړ کـړ
شو چی اوس هم شته)).

د مزارات کابل مؤلف د ده د مزار موقعیت داسی تاکی: ((این مزار در وسط را ه
وزیارت حضرت تمیم قریب قبر میرمحمد هاشم خان است)) (۲۱).

---

(۱۹) بجنور: د روهیلکهند د سیمی په ښارونو کی یو ښار دي. روهیلکهند د هندوستان
په شمال کی د ګنګاه د رود برختیځه غاړه د یوې پراخی سیمی نوم و، چی لـه
بجنوره پرته رامپور، مراد آباد، بریلی، شاهجهان پور، سنبهل، نجیب آباد،
امروهه او نګینه پی مشهور ښارونه دي، د روهیل کهند سیمه په اداري لحاظ
داتر پردیش په ایالت پوري اړه لري (وګوری:
شیخ بستان بړیځ، بمر یخی او ښاوراوك د فاضل استاد بوهاند
رشاد مقاله د ۱۳ مخ لمن لیك، د ۱۳۶۰ ش کال
چاپ، د اطلاعاتو او کلتور وزارت)

(۲۰) پښتانه شعراء ج ۳ ص ۷۷۶

(۲۱) مزارات کابل، محمد ابراهیم خلیل تالیف، ۵۰ مخ، د ۱۳۳۹ کال چاپ، کابل
تاریخ ټولنه.

د ده د مزار پرکتیبه چی په پښتو ژبه ده داسی کښل شـــــوی دي

(( یا ایها النفس ارجعی الی ربـك راضیـة فادخلی فی عبادي وادخلی جنـــتی ))

( ایـه ) (( مولوي غلام محی الدین خان افغان په تندهارکی متولد شو او هلتـــه یې دینی تعلیم حاصل کړ ، پس په معیت د سردار ایوبخان په راولپنډۍ او لاهـــور کی فراریه حالت کی له انگریزي مکتبو څخه جدید تعلیم واخیست ، چی بیرتـــه کابل ته راغی د امیرحبیب الله خان په عهد د مکاتب ابتدا ئیو ممتحن مقرر شو ، پس لـــه خدمت د (۱۴) کالو د معارف د امیر امان الله خان غازي په روښان دوران کی مدیـــر د دارالمعلمین شو ، او هغه خیالات او ارادې کی چی د اصلاح او ترقی د ملت چـــی دولس کاله یې پخوا یې په مجلس د جان نثاران اسلام کی معاقده کړې وې ، د ظل الهـــی تر سیوري لاندې پخپله ثمرته ورسیدې په داکیف مطمئن اوراضی د عباد الله پـــــه خدمت کی داخل په اجل د وبای هیضه وپروردگارته راجع شو ، او هغه د تولوخښتن په جنت کی داخل کړ ، دا دعا ( ځوان افغان ) په یاد د هغه د وطن دوستی او وفالـــــه زړه څخه ښــوي چی :

چی په یاربسی ترځان اوجهان تیر روي
څوك کولای شی داهسی مشقـــــــت

د شپیتو کالو د صلاح او تجرد او ځوانئ په ژوند کی ملگری د ځوان مردانو او اهـــل او صالح د هرمشرب چی ټول یې امرزش غواړي :

بروز مرگ که یوم وصال یاران است
کسیکـه دست من آن دم گرفت یار انست

تاریخ وفات چهارشنبه ۱۱، اسد ۱۳۰۰ هـ ش (۲۲) ، مطابق ۲۸ ذیقعدة الحـرام ۱۳۳۹ هـ ق ) ) (۲۳) ،

---

(۲۲) د پښتو ځانتنی ادب اوموسیقی نومی کتاب د مقدمی په ۵۰ مخ کی چـــــی د غلام محی الدین خان د مړینی کال ۱۳۱۱ هـ ش چاپ شوی یو وطباعتـــــــی تیروتنه ده ،

(۲۳) د کتیبی نقل چی په پښتانه شعراء ج ۳ ص ۷۷۶–۷۷۷، او اوسنی لیکوال ج ۱ ص ۷۲– ۷۳ کی راوړل شوی ، اختلاف سره لري ، ما د دواړو له مخی وکښلـــــه ، هیله لرم چی سهی می راخیستی وي ،

## آثــار

دمرحوم افغان دژوندليك په پای کی چی ماله ((امان افغان)) څخه ددغه دمرینس
په باب دمحمد جعفر سرکاتب مکتوب رانقل کړی دی . هوري ليکونکی کښلیدي چې:
((... چند کتب مفید مراجعت یادگارتاً لیف و ترجمه کرده اند)) . مگرمایی تراوسه
کوم مستقل چاپی کتاب نه دی لیدلی . د ((نگاهی بـرنقش فرهنگی افغانستان درعهد
اسلامی)) نومی مجموعی دامانیه دوري په آثارو او چاپی کتابوکی یو کتاب داسـی
بیژندل شوی دی: ((اخلاق ومعلومات مدینه صنف چهارم رشدیه)) او مؤ لـف
یی محی الدین بنوول شوی دی چی په ۱۳۰۴ ش کال ۲۶۴ مخه چاپ شوی دی. (۲۴) که
دغه کتاب ددغه وي نو ترمونږ یی څلور کاله وروسته چاپ شوی دی چی یو درسـی
کتاب دی. داخلاقو او مدنی معلوماتو په باب بحثونه او خبري لري.

له دې سر بیره دافغان دآثارو په باب زموږ معلومات دسراج الاخبار په پاڼـو
متکی دي، او په دې خبرونه او معرف معارف کی ددمخینی متفرق پارکی منشوري توتی
(مضامین) او فولکلوریك آثار خوندي دي چی دهمدغو آثارو معرفی یی زه دلی کـــازم:

### منظوم آثار

دافغان په لاس ته راغلیو منظومو آثاروکی یو غزله، دري قصیده و شمه غزلی او قصیدې
دري مخمسه، یو ترجیع بنـد ذوالقافیتـین، او یو مسدس شامل دي.

دغه منظوم آثار د شکل پـه لـحاظ زاړه، مگر د مضمون په لحاظ یی زیاتره پارکـی،
نوي خبري او نوي کړه وړه لري.

په دغو منظومو پارکوکی اکثره اجتماعی، ملی او اخلاقی مسایل بیان شوي دي. لــه
عالم اسلام سره دانگریزي او غربی استعماري طاقتونو ناخوالو او ناروا وو خبرې یـکــی
شوي دي. نوي مفاهیم، تعابیرو او اصطلاحات په دغو پارکوکی راغلی، چی ددغـی
دوري له شاعرانو پرته یی په دمخینو اشعاروکی موږ څرك نشوای ایستلای.

غلام محی الدین افغان دوخت په مروجو عصري علومو پوه و. دسیاسی جگړې د ډگر
پوغښتلی پهلوان او یو مخبل وطنمین. ده چی شعرونه ویل نو یی د شکل په لحاظ دهغـو
زړو کلاسیکو فورمونو پیروي وکړه. خو دمضمون په لحاظ له یو شمیر پارکی پرته پرهغی پخوانـی
لارې نه دی تللی، او دعصر لغوښتنو سره سم یی نوي ملی، وطنی، سیاسی او اجتماعـی

---

(۲۴) نقش فرهنگی، ص ۱۲۳، دپوهاند دوکتور جاوید مقاله، د ۱۳۵۵ ش کــال
چاپ.

مسایل په شعرکی بیان کړي دي ۰ که څههم افغان د پښتو کلاسیکو شاعرانـــــــو له آثارو سره پوره پوره اشنایی درلوده ۰ خو د هغوی مضامین یې دخپلې زمانې غوښتنو ته دجواب ور ونه بلل اوله خپل فکري سیر اودملت اووطن دمصالحو په پام کې نرلو یې زاړه شعري موضوعي قالبونه مات کړه اوپه نویو مفاهیمواووطني مسایلوسولل شـوي شعرونه یې په زړ وعنعنوي شعري شکلونوکې راونغښتل ۰

لوی استاد پوهاند حبیبي دغلام محی الدین افغان د دغه فکري تجدد په بـــــاب کاږي : (( (څو ) کاله پخوازما نه دریه یادکې ٔ هغه وخت چاپښتوشعـــرنه وایـــــــه ۰ اوکه به هم څوك په دي فکرکی وُ ٔ هغه به دخوشحال اورحمان پیروي کوله ۰ دتوروزلفــو په شکنـــج کی به نښتی اودبانـــو به غشی بـــه ژوبل وُ ٔ دشعر موضوعاو محتوي یوزرکاله دغسی راغلی وه ٔ اوخلك هم پر دغه لارتلل ۰ یو وارنابېره غلام محی الدین افغان دشعر مجری بدله کړه ٔ اویـه (۱۳۳۳هـ ق ) یې په سراج الاخبارکی دکوم خیالی محبــو ب داوږدو زلفواو بنګلی مخ اوهلال ابرو دستاینې پرځای دوطن پـه حقیقی دلبــــــر پوري داسی سندره وویله :

خپل وطن ماته عزیزدی ترخپل تن))(۲۵)    زړه زمارك دي له مینې دوطـــــن

افغان په پښتو شعرکی هغه مهال په موضوعی لحاظ دغسی یو فکري حرکت راووســـــت او داځکه چې دی اړ وُ ٔ چې دغسی ملی اووطنی مسایل دخلکو دبیـداري له پـــا ره په خپلو سندروکی راونغاړي ۰ ځکه د ده خپل پلرنی تاتوبی کی دانګلیس استعمـــــا ر نماینده ګوډاګی امیرپه خپلو مزو اوچړ چواخته وُ ٔ اوپه ټول شرق کی داروپایې متمـــد ن صفتووحشیانو پرغلونه جاري وُ اوبیا هم دغه وخت استعماري ځواکونه دخپلو ګټود ساتنـــو او دخپلو مستعمراتو د پراخولو په نیت به خپلوکی سره ونښتل لومړ ی عمومی جنګ پیل شــو ( ۱۹۱۴ )۰دغه جنګ زموږ دمملکت پر سیاسی او ضاعوهم تاثیر درلود ٔ دغه وخـــــت کی زموږ داولس جذبات پاریدلی وو۰ دغـه وضع اوله انګریز سره دامیر دسازشونــــو په باب دافغان دیوه بل معاصر شاعرعبدالرحمن لودین(۱۳۰۹ هـ ش شهـید) د زړ ه دوینا وو راوړل هم دلته له موضوع سره بی ارتباطه نه دي :

---

(۲۵) په اوسنی پښتوشعرکی دوږوند څپې ٔ ۲٦ مخ ٔ د ۱۳٦۰ ش کال چاپ ــ کابـــــل پښتوټولنه ۰

ای ملت از برای خدا زود تر شوید — از شر ومکر وحیلهٔ دشمن خبر شوید
تا ازصدای صاعقه اش گنگ وکر شوید — وانگه چو رعد نعره زنان دربدر شوید
مانند برق جلوه کنان درنظر شوید

ازیکطرف نهنگ وزد یگرطرف پلنگ — هرد و بخون ما دهن خویش کرده رنگ
اکنون که گشته اند بخود مبتلا زجنگ — جهد کنید بهرچه هست اینهمه درنگ
درحفظ راه حق همه تیغ وسپر شوید

این وقت فرصت است نه هنگام جنگ وشور — هرکس که فوت میکند ش میشود کور
پس درهمین خلال وچنین حال واین فتور — تیزي وسعی وهمت تان اینقدر ضرور
تا ازبرای چشم عدو نیشتر شوید

امروز درتمام عالم چه شوروشر — بر پا و ما نشسته از آنجمله بی خبر
نی فکر سود نی سرسود ایمان به سر — افسوس بر ملاکت حال چنین بشر
باید زشرم آب زپا تا بسر شوید

الله عالم است کاین خصم بدسرشت — این حب حب خویش چه شان کرده است کشت
تاهیچ فرق کرد نباید زخوب وزشت — نقشی چنین بساط بیابست درنوشت
ترسم خدانخواسته زیر وزبر شوید (۲٦)

دغلام محی الدین افغان دیوه بل پښتون معاصر شاعر استاد عبدالهادي داوي دالاندې پارسی غزل هم دهغه عصر دملی غورځنگونو اوروشنفکري حلقوفکري سیراو غوښتنې ښی رابنیي :

تابه کی اولاد افغان تابه کی — تابه کی هان تابه کی هان تابه کی
کوکوی مرغ سحرامد بگوش — خرخرخواب ای گران جان تابه کی
نوربیداری جهانی راگرفت — خواب غفلت ای حریفان تابه کی
سبزهٔ خوابیده هم برداشت سر — بر نمیداری تو مژگان تابه کی
میرسد آواز سیل ازرا ه دور — تو به خواب ای خانه ویران تابه کی
میوزد باد خزانت درچمن — شوق گلگشت بیابان تابه کی
باید یت برحال خویشت خون گریست — سیر انهار وگلستان تابه کی
یك نفس سرد رگریبان درکنید — فکر کالای جوانان تابه کی
رفت وقت خنده وهزل ومزاج — خورد سالی خورد سالان تابه کی
اي قلم اخر زبانت میبرند — این قدر حرف "پریشان"* تابه کی (۲۷)

(۲٦) (۲۷) افغانستان دمسیر تاریخ ص ۷۲۱ــ ۷۲۵ .

* پریشان داستاد "داوی" تخلص ؤ .

په دغسې يوه علمي او فرهنګي محيط کې له هېواد پالو انقلابي شاعرانو سره محشور د يوه حساس او متجدد د فکر خاوند شاعر څنګه کولای شي چې پخپلو ترانو کې د ګل او بلبل نغمې وزغوي ۰ او يا خپلې سندرې د زلف او کاکل خبرو ته وقف کړي . افغان د زماني او شرايطو ترتاثير لاندې د ملت له غوښتنو او د ادب او د فکري يون سره سم پخوانۍ خبرې او هغه زاړه ورواسته شوي موضوعات پرېښودل او د هغه پرځای يې د وطن ، او خلکو ترانې وويلې ۰ خلک يې ويښ کړل ۰ خپلې ژبې ، خپل قوم او خپل ملت ته يې د بېدارۍ درسونه ورکړل ، او حتی د فکر نيسلی څپوازې د ګران افغانستان په جغرافيايي محدوده کې تم نه شو ۰ بلکه د ټول شرق د بيدارۍ او د استعمار له خونړ پنجو منګولو څخه يې د دغو ترستم لاندې مظلومو ملتونو آوازد شعر په ژبه رااوچت کړ ۰ خپل قديم او زاړه مفاخر يې په خپل کلام کې ونمانځل ، دا د هر وطنپرست او په خپل قوم مين وظيفه وه او ده چې په خپلو نوميالو وياړي ، او په خپلو ملي او تاريخي افتخاراتو مباهات وکړي ۰

دافغان فکري غورځنګ د وطنپرستۍ له معيارونو سره برابر دی او هغه څه چې دده موږ ته پرېښې رموز د ملي او ادبي تاريخ خلاند بابونه جوړوي ۰

دده په يوه پاړ کې کې د پاچا ( اميرحبيب الله ) ستاينه هم شوې ده ، او څوک بنايي دا انتقاد وکړي چې دانګريزانو د يوه ګوډاګي پاچا مدحه يې کړې ده ۰ مګر اصلي خبره داده ، چې د هغه وخت فرهنګيانو خصوصاً د سراج الاخبار افغانيه دليکوالو او پياوړي مدير دا پاليسي وه ، چې ټول انقلابي مضامين او اشعار به يې دده ننامه په تشه يادونه په اخبارکې خپرول ، او د پاچاله پاره دغه يادونه په حقيقت کې داسې زهر وو ، چې د شاتو په نامه ورکول کېدل ۰

دافغان لاسته راغلې پاړ کې زياتره ملي اووطني خواوې لري ۰ له وطن او خلکو سره مينه پکې په څپو ده ۰ دی يو ملي اووطني شاعر دی ۰ له علم او پوهې سره د پښتنو دا شنايۍ سرسخت طرفدار و ، اودعلم او کمال په ښيګڼو او توصيفونو کې هم ځينې پاړ کې لري ، چې دعصر د تقاضو زيږنده دي ۰

دده د پاړ کو له موضوعي تشريح چې تېر شو اودهنر اوښکلا له پلوه پرې څه ووايو تو دلته د پښتو دادبي تاريخ د يوه نقاد خبرې رايادېږي ، چې څو کاله دمخه يې په سراج الاخبارکې دخپرووشوو پښتو شعرونو په هنري ارزښتونو کړې وې ، زه د هغو خبره لږه برخه دلې رااخلم :

(( ۰۰۰ ددې دورې داشعارونمونې د يوه پېر سا ده اومبتدي شعرښکارندوی دي ۰

ښې هلته سمبولونه نیغ په نیغه، اوس له دې چې هنري عملیه پرې اجراشي، یوبل پسې قطارشوي دي ((پسته می خپل بادام می خپل روغن می خپل دی)) هیڅ تخیل نه لري. بې له دې چې دهیواد خپلواکی او شتمنی ته یوه برېښنده او سطحي اشاره ده. حتی هغه زوړ سمبولیزم چې پسته خولی ته، او بادام سترګو ته ورته وبولي هم دلته نشته که داشعرونه دپښتو دشفاهي اوکلیزیانو و دشعرونو، غزلواو لنډیو سره پرتله شي له ورایه ښکاري چې شاعرنه دی برپالی شوی هغه ایډیال چې دی وریاندی ګروهمن دی. داسی بیان کړی چې خلکو ته دشعر په حیث دمنلو وړ وي. ددغو شاعرانو نه هم دپښتو دطلایی عصر عنعنه ورکه ده او هم یې دلوی کس په خیر خبرې نه زده. )) (۲۸) داخبره تریوه ځایه سمه ده، چې په سراج الاخبارکی خپاره شوي پښتو نظمونه ترزیاته حده له هنره بی برخی دي، او دښکلا ارخ یې کمزوری دی، او ددې کمزورتیا علتونه موږ داسی څیړلی شو چې دغو شاعرانو دقدماوو موضوعی قالبونه دړې وړې کړل، او پرځای یې نوي موضوعات چې ترزیاته حده لهوطن او خلکو او اجتماعی ژوند سره اړه درلوده په خپلوا شعاروکی راونغښتل نو دابايد یو طبیعی جریان وبولو چې دقدیمی عنعنی پرېښوول او دنویو مفاهیمو منل په لومړي مرحله کی څه ضعفونه اونیمګړ تیاوې لري. ځکه دشعر په هنري اولطیفو څپو کی دنویو وطنی او اجتماعی مسا یلو ځایول ددغسی شاعرانوله خوا چې قدیمی شعري عنعنی یې زیاتره په خیالی اوسمبولی موضوعاتو کی وي، څه اسان کار نه دي. په همدې وجه دافغان ځینی شعرونه هم په هنري لحاظ اوچت مقام نه لري او حتی په ځینو برخو کی یې تخنیکی نیمګړ تیاوي هم ترسترګو کیږي دوزن او نظم اړیکی یې سره سرنه خوري. سکتی او دځینو پارکو په مسریو کی یې دهجاوود کمبوت اوزیاتوب مسأله هم مطرح ده.

اما ددې ترڅنګه داهم دهیرولونه ده چې دافغان ځینی پارکی، لکه: درحمان بابا پرغزلو مخمسات سربیره پرموضوعی ارزښتونو د هنر او ښکلا له پلوه هم لوړ معیازلري. او دافغان دډېرې لوړې ادبی تریحی نمایندګی کوي. دیوه مخمس دغه یو بندیې وګورئ!

---

(۲۸) دتفصیل له پاره وګورئ! کابل مجله د ۲۴۱ کال ۶ ګڼه ۳۶ـ۴۱ مخونه. پښتو چاپی آثار ۲۹۸ـ۲۹۹ مخونه، دښاغلی شپون مقالی.

ځوك چې ورك له خپل وطن وي څه به خوب کا

ستمګرچې (۲۹) ګلبدن وي څه به خوب کـــا

مبتلا چې په شيون وي څه به خوب کـــــا

هغه ځوك چې د ی مين وي څه به خوب کـا

چې فرهاد فوند ې کوهکن وي څه به خوب کا (۳۰)

افغان او لرغوني پښتانه شاعران :

مرحوم غلام محی الدين يو داسی پښتو مين اديب و، چې د د ې ژبې د ترقـــــئ په لياره کې د مهمو خدمتونو ترڅنګه د پښتو له لرغونو آثارو او فرهنګی ميراثونو سره هـم مينه درلوده . د ده له لاس‌ته راغلو پارکو او آثارو څخه ښکاري، چې ده د خوشحـــال ختك (۱۰۲۲ــ۱۱۰۰ هـ ق ) او عبدالرحمن بابا ( ۱۰۴۲ــ۱۱۲۸ هـ ق) د آثارو او ديوانونو پراخه مطالعه درلوده، ښايي نور پښتو آثاريې هم لوستی وي .

افغان سر بيره پردې چې د خوشحال خان ختك سوانح لومړ ی ځل په پارســـــــې ژبه د افغانستان په مطبوعاتو کی خپرې کړ ې . خپل دغه لاند ې مخمس:

((څه عجبه خوب و، چې مې وليده سحر      زه يم په يورپ‌کی اوګرځيزم لرو بـــر

ټول يورپ اخته (د ی) په غوغا په‌شورو‌شـــر      يوتربله وژنی په ټوپك اوپه خنجــــر

ماوې دا به ملك وي د سيناياد بربر .))

يې د لوي خان د هغه مشهور (( ترکيب بند ذوالمقافيتين )) په پيروي او د هغه تـــــر اغيز لاند ې ويلی د ی، چې خان په هغه کی د خپل نيول کيدو، اوبند واقعات ګرده بيان کړ ي د ي . ټول د وه سوه شل بيته د ی او يوولس‌بنده لري، او خان د رنتهبور په جيل کی ويلی د ی . (۳۱) د پيل بيتونه يې دادي :

---

(۲۹) چې = چې يې، دکند هارګر دود . په لرغونو پښتو متونوکی همداسی راغلی د ي .

(۳۰) سراج الاخبار، پنځم کال ۱۹ ګڼــه

(۳۱) کليات خوشحال خان ختك ۹۲۴ــ۹۴۷ مخونه، د مرحوم استاد کامل له سريزې لمنو او سمونوسره، د ۱۹۶۰ ع‌کال چاپ . د وهم ځل، اداره اشاعت سسرحد .

څه د بدو خوبو ، چې      مې وليدءه سحر      سترګي مې رڼې کړې ناقرارشوم په بستـــــر
پاڅيدم له کټه لکه خوږ شي د چا ســــر      هسې شان او ترشوم نه مې لير ليد ونه وو

له دې سربيره د ده موجود ترلاسه شوي کلام کې د وه داسې مخمسونه شته ، چـــې دلسان اللغيب رحمان بابا پر دغو لاندې غزلوبې ويلې دي :

هغه ژوي چې مين وي څه به خو کا      چې مجنون غوندې کړ من وي څه به خوب کا (۳۲)
اې زما د زړه ارامه راشه شـــــه      سروقدوګل اندامه راشه راشــــــه (۳۳)

له دې سربيره يې دخپل يوه پښتو منثور مضمون په ترڅ کې د شمس العلماء قاضـي ميراحمد شاه رضواني د يوه شعر اقتباس هم راوړ ی ، چې ماد هماغه مضمون پـــــه حاشيه کې لازم توضيحات ورکړ ي او دلته يې دغه لوړه يادونه کافي بولم .

## منثور آثار

د افغان په ترلاسه شوو آثارو کې ځينې منثورې ټوټې هم زموږ په واک کې دي ، چې له دغو منثورو ټوټو څخه يوه په پارسي ژبه او دوې په پښتو دي .

(۱) پارسي مقاله :

د افغان پارسي مقاله د (( حالات خوشحال خان ختك )) سرليك لري ، اويه دې ليکنه کې يې د پښتو ادب او ځاراوستر شاعر خوشحال خان ختك خپلو افغاني پارســـي ژبو ورونو ته د دوی په ژبه معرفي کړ ي د ی . د هغه وخت له معلوماتو اسناد واومد ارکو سره سم يې دلوی خان سيرت ښايسته ډ يرښه ښوولې د ی ، او ځينې برخې يې ا وس هم د منلو وړ دي . افغان ښايي دغه مقاله په دې نيامت په پارسي ژبه کښلې وي ، چـــې د افغانستان پښتانه خوله د واړ و ژبو پوره استفاده کولاي شي ، او حتی زموږ د پارســي فرهنګ زيات آثار پښتو کښلي د ي ، نو يو يه چې د پښتو د دغه عظيم اومبارز شاعـــــر سوانح او کارنامې په پارسي ژبه وکښلې شي . ګټه به يې ډ يره اود افغانستان باسوا ده طبقه به ګرده د ی ويېژني .

د موضوع او مضمون په لحاظ دغه نثرته موږ تحقيقي نثر ويلې شو ، ځکه په خپله ليکوال د مقالې په پيل کې کښلي د ي : (( بطور اختصار از کتب متفرقه افغاني وپارسي نوشتـــه شده )) نثـــر اود ليکلو شيوه يې هم د منلو وړ د ه . د دغې د ورې د پارسي نثــــــــر

---

(۳۲) (۳۳) د رحمان بابا د يوان لومړ ی دفتر ۷۷ ــ ۹۰ مخونه . د ۱۲۷۳ هـ ق کـــا ل د پېښور د رتضايي مطبعي چاپ .

دخصوصیاتو په باب دپارسي ادب یو ځوان اوسني لیکوال کښلي دي : ((جریان نثر نگاري این دوره نیز از رهگذر ساده نگارې وبي تکلف نویسي قابل تاً مل است . اگرچه ساده نویسي ودوري جستن از تکلفات نگارش نثر فني دوره های پیشتر اززمان نشر جریدهٔ شمس‌النهار (۱۸۷۴ع) اغاز یافته بود ، اما درین دوره بیشتر ازپیش متکامل گردید وحتی گرایش‌ها دنویسی بانوعي بینش ابتدایي پاکیزه نویسي دري هماهنگي یافت ...)) (۳۴) دافغان پارسي نثر هم دروانۍ ، سادگۍ اودالفاظو او تعابیرو داداله پلوه په سراج الاخبارکې څهوڅو پارسي نثرونو سره اوږه په اوږه په یوه صف کې ددرید وحق لري ، او کومه ښکلاچې دسراج الاخبار په نورو منشورو لیکوکې لیدل کیږي ، دافغان پارسي نثر هم هغه خصوصیات لري .

(۲) پښتو مقاله :

دده پښتو مقاله ((افغانستان دسرو زرو مرغۍ دی)) نومیږي . دغه نثر تحقیقي جنبه نه لري ، بلکه یواخباري نثر دي ، چې هدف یې دخپلو وطني احساساتو څرگندونه ، او دخپل وطن په گټه تبلیغ دي ، او زموږ دژبې داخباري نثرونو په لومړنۍ قطار کې دریږي ، ددغه نثر یو ټوکرولولو :

((داملك دهندوستان ، بلوچستان دایران اودچین په میانځ کې پروت دی دې ملك ته که باغ ارم هرڅوك ووایي نوبې شك ښایي . ولی چې پاك رب داملك بالا تشبیه په مثال دخلدبرین پیداکړي دي ، اوبه دې ملك کې سر سبزغرونه ، زرغونه چمنونه ، خوږې اوبه ، شیریني میوې ، رنگارنگ گلونه ، ښایسته خلق او باغیرت سړي زښته ډیر دي ..))

دانثر زموږ داخباري نثرونو قدیمه بولگه ده ، چې په لمریز لیز دیز شمیر خلورشپیته کاله نسخه کښل شوې ده . مگر دنثر خوږ والي او رواني یې دغه نثر دهنري نثر پوړ ته رسوي ، خو دشکل له پلوه یې موږ په هنري نثر (۳۵) کې

---

(۳۴) دهنر مجله . ددریم کال ۴ گڼه ۲ ۵مخ . دبو یافاریابي مقاله ، ۱۳۵۹ش کال .

(۳۵) په هنري نثر کې : ناول ، رمان ، داستان ، لنډه کیسه ، ډرامه ، اوادبي ټوټه راځي (وگورئ ! ډزیري ۲ نمبرفوق العاده گڼه ۴۱ مخ ۱۳۵۶ش کال پښتوټولنه ، دیادونې وړ ده . چې ما ((دپښتو ځانتني ادب اوموسیقي)) نومي کتاب دمقدمې په ۱۵ مخ کې عبرت‌نومي ډرامه پښتوبللې ده . هغه ډرامه پښتونه ده ، بلکه په اردوژبه پښتني ماحول پکې تمثیل شوي دي .

نه شو مطالعه کولای، او اخباري نثر ورته ویل کیږي . د یاد ولو ږ خبره خو به د ې برخه کې داده، چې مرحوم افغان او مولوي صالح محمدخان هوتك مرحوم په سراج الاخبار کې د پښتو نثر داسې نمونې خپرې کړې، چې د عامو خلکو ژبې ته نژدې وې . سادګي او سلاست یې مهمه خاصه وه . مګر کله چې په اماني عصر او یا راوروسته اخباري او یا قانوني نثرونه (۳٦) وکښل شول . ډیرې خونده او له تکلفه ډك وو، تاسې لاندې د اماني عصر د نثر یو لګه ولولئ :

(( هرنوم د پارسي چې په پښتو نوم ولري . د دې د پاره دې نومونه د میوو او د ونو او د ونو د ګلونو او د اورونو نومونه چې ناولده وي . یالز ار ویدل کیږي وکښل سي د پاره دار ولو ( جوړ ولو ) د پښتو خبرو . هرڅه کښلي بايي چې په هره ژبه د هرچا څخه وي یا ورښکاره وي . ولځای ته د مرکي دې ور اندي کې کسي په ملګري ومرکس ته ورکوي پښه که نه په خوښه د ده په ځښتی ویبرودل سي . . )) (۳۷)

وګوري، دغه نثر او د افغان نثر د رواني او د خلکو محاورې او ورځنیو خبرو ته د نژدیوالي له جهته څومره توپیرونه لري . هغه څومره روان او د ابل داڅومره کړ کیچن دی .

دغه رنګه کله چې طلوع افغان پښتو شو، پښتو مجله د کندهار د ادبي انجمن له خوا خپره شوه، او یا په اتحاد مشرقي کې پښتو مضامین خپاره شول . نو دغه مهال د پښتو د اخباري نثر د ارتقا او ودې له پاره ښه شرایط برابر شول، او لیکوالو پښتو نثر لیکلو ته شروع وکړه . مګر متاء سفانه چې دغه نثرونه هم په سراج الاخبار کې د خپرو شوو نثرونو په پرتله ډیر کمزوري او کړ کیچن دي . د مثال لپاره لاندیني نثر ولولئ :

(( . . . او لوی رکن د ټینګوالی د بناد اقتصاد د ملتو صنایع د دوي دي . هیڅ ملت په صحنه د تنازع د ژوندون یربې نه مومی او د خپلو سیالانو سره نه سمیږي څو وطني صنایع پلن نه کې او د دښتو کور او د خپل ملت احتیاجات چې داخل کې د وطن مهیا نه کي او د خپل مصنوعاتو تجارت په دنیاکې خپورنه کې )) (۳۸) .

---

(۳٦) د قانوني نثر اصطلاح د لوي استاد پوهاند عبدالحی حبیبي په هغه لیکنه کارول شوې ده، چې یې د (( په وروستیو دوو پیړیو کې د پښتو چاپي اثار وبین المللي سیمینار )) له پاره لیکلې وه . ( وګوری، ! پښتو چاپي آثار ٦٠ مخ )

(۳۷) وګوری، ! د پښتو مرکي اعلان . د ۱۳۰۷ ش کال د میزان ۷ نیټه .

(۳۸) وګوري، ! طلوع افغان لسم کال ۱۳۱۱ ش ۱۸ ګڼه

او یا د پښتو مجلې دغه نثر: ((داخو یوه ښکاره خبره ده، چې هلك ترڅو پورې چې نه مندونکی داساسی تربیت وي، یوازې د تعلیم په واسطه دحقیقی فضایلو یعنی ښایسته اخلاقو قدرت هیڅ کله نه سی مندلای او د داسې بې تربیت هلك د لاسه هرو مرو دا ایراد وروي)) (۳۹)

وګورئ! د نثر لوړ دوې نمونې یوه د افغان ترنشره پنځلس کاله وروسته اوبله کابو ۱۹ کاله وروسته کښل شوې، خو کومه رواني اوسادګي چې د افغان په نثر کی ده. په دغو لوړ و نمونو او یا له ۱۳۰۰-۱۳۱۵ کلونو په کښل شوو نثرونو کی نه لیدل کیږي. زه د افغان ددغې ساده لیکنې او په نثر کی د رواني د مراعت علتونه داسې څیړم، چې:

ده د خپل عمر یوه برخه په لره پښتو نخوا او د قدیم هندوستان په سیمو کی تیره کړې وه، او هلته د ده داستوګی په مهال کی د پښتو د هنري نثر کښلو دوره پیل شوې وه. مولوي احمد د تنګی ګنج پښتو کښلی و، او تاریخ سلطان محمودي ژباړلی و. دغه رنګه نورو پښتنو لیکوالو هم د پښتو نثر لیکنی خواته هڅه کړې وه. نو افغان د پښتو آثارو دیوه مینه وال په توګه دغه آثار هرو مرو لوستي اود هغوی سا د ه لیکنو د ده په کښنو هم اغیزې ښندلی دي. او د ده نثر ته یې هم خوږ لت ورکړی دی. مګر زموږ هغو لیکوالو چې په بره پښتونخوا کی تر ۱۳۰۰ هـ ش وروسته نثرلیکلو ته شروع وکړه. تر ۱۳۱۵ هـ ش پورې یې داسې نثرونه وکښل چې زیاتره د تکي په تکي ژباړنې رنګ لري، او ادات پکی د پردې ځایه استعمال شوي دي. په ګرامري لحاظ هم کمزوري لري. د خلکو له محاورې اوخبرو خوګرد سره لیرې دي. البته د دې دورې په ټولو نثرونو دغه یو ول حکم کول به یوعندي قضاوت وي. په دې دوره کی هم ښایی زموږ ځینو لیکوالو ښه نثرونه کښلي وي، خصوصاً د پښتو مرکی د سوچ تسا په هڅې او دځینو لیکوالو بو بې پښتولیکنی د پښتو ادب له پاره دقدر وړ دي. خو په زیاترو منشورو آثارو کی یې بې خوندي او کمزوري لیدل کیږي.

(۳) پښتو اعلان:

د افغان په لاس ته راغلو منشورو آثارو کی یو پښتو اعلان هم شته. که د ژورنالیزم داساساتو او بیا په هغه کی د اعلان کښنی او یا اعلاناتو دفن له نظره دغه اعلان وڅیړو. نو هغه اهداف چې یو اعلان یې لري، په دغه اعلان کی هم لیدل کیږي. د اعلان عمومي

---

(۳۹) وګورئ! پښتو مجله (د ادبي انجمن خپرونه) ۴ کال ۹ ګڼه ۲۰ مخ.

او آر هدف تشویق او ترغیب دي(۴۰) په دغه اعلان کی هم دغه هدف پټ دي، او خلک یی دې ته تشویق کړي، چی په پښتو لیک وکړ ي، او د دغه اعلان عمده ارزښت په دې کی دی، چی په خلکو کی د انتقاد روحیه ژوندیه کوي . او ښتانه لیکوال او شاعران دې ته رابولی، چی د سراج الاخبار په پښتنو لیکنو انتقاد وکړ ي . ځکه که په یوه علمی ټولنه کی سالم انتقاد موجود نه وي، ادبیات او نورعلمی آثار یی وده نشی کولای . اما انتقاد باید بې یر بیطرفانه او له هر ډول حب وبغض نه خالی وي(۴۱) .

## دافغان د دغه اعلان نتیجه :

کله چی دغه په سراج الاخبار کی دغه اعلان خپور کړ . نو مولوي عبدالسلام کاموي (۴۲) سملاسی د دغه اعلان په ارتباط سراج الاخبار ته یو نظم واستاوه، چی څو بیتونه یـــــی دادي :

اول حمد د هغه پاك پروردگاردي — چی معز د ممکناتو په مقدا ردي
مولانا غلام محی الدین صاحب څوک ی — د تمام افغانستان د سترگو تور دی
په درویشتمه شماره کی د اخبـــــار — یو اعلان یی په پښتو کښلی تیــــار
هر افغان یی په مضمون باندې پرسېږي — په لوستو یی یو تر بله هوسیــــږي
ایراد نشته په پښتو کی ای صاحبــــه — فضل شوي په افغان د ی له واهبه
افغانان بهادران د زمانــــــی دي — نور اقوام ورته په شان د زمانی دي
که اخبار شی مزین په افغانــــــی — نورانی به شی افغان په معانــــی
اي خاونده ذوالجلاله باري خدایه — ترقی پښتوله ورکړه بی نهایه (۴۳)

د اعلاناتو د فن له مخی یو اعلان هغه وخت مؤثر وي، چی خلک تشویق کړی، شـــــی د افغان د دغه پښتو اعلان هم دغه هدف بې یر ښه ترسره کړ ی دی، او موږ یی د پښتـــــو اعلاناتو د پیلامــــی په مؤفقو اعلانونو کی شمیر لای شو .

---

(۴۰) اعلانات ، د ژورنالیزم د څانگی درسی مواد .

(۴۱) ادبی خیرنی ، د خیرندوي محمد صدیق روهی تالیف ، کره کتنه او د هغــــــی تاریخی پس منظر .

(۴۲) فرهنگ زبان وادبیات پښتو ج ۱ ص ۳۱۰ .

(۴۳) سراج الاخبار ۷ کال ۱۲۹٦، درېمه گڼه .

دمرحوم مولوي غلام محی الدین افغان په لاس ته راغلواو موجودو آثارو کې ځینې داسې مواد هم تر موږه رارسیدلي، چې هغه په فولکلورکې مطالعه کیږي. دغه ټول مواد دهرقوم اوملت په تیره دپښتني فولکلوریومهم توك دي. دافغان له خوا دغه راټول شوي مواد، چې سراج الاخبار په پاڼو کې خوندي دي ((دپښتو مشهور متلونه)) ترسرلیك لاندې راغلي، چې دټولو شمیره یو سلو څلورڅلوېښتو ته رسیږي. کومه تبصره او یادونه نه لري.

متلونه زموږ دفولکلوریه ډیرو ارزښتمنو څانګو کې حسابیږي، چې پوره اوهرار خیزه ټولونه اوعلمي څیړنه یې زموږ دکلتور ډیر ارزښتمن اودپام وړ توکونه راسبړي، اوزموږ دخلکو داجتماعي ژوندانه ډیرې لرغونې اوپه زړه پورې خواوې رابرسیره کوي، اوپه پښتو متلونو کې ځینې داسې متلونه هم موندل کیږي، چې دریښې اوسته له پلوه ډیر لرغوني دي اوشته یې حتی دژبپوهانو له پاره هم دڅیړنې اوګرویږنې نوي وروونه پرانیځي (۴۴)

متلونه که څه هم لنډې وېناوې دي. خوپه دغو لنډو وېناووکې حکمتونه، اوډګتې وړ خبرې راغلي وي په متلونو کې دقومونو او ملتونو دروحیاتو ډیرې ښې اوډیادونې وړ نکتې پټې دي، اوځینې پوهان لا داهم وايي، چې ترشعر لا متلونه دمتلونو پرعقلیت ښه دلالت کوي، اوداځکه چې شعرونه دداسې خلکو له کومو راوځي چې فکر، ذهن اوعقلیت یې ترعامو خلکولوړ وي، اما متلونه دعامووګړو دذهن اوفکرمولود دي، او ددوی له روحیاتو حکایت کوي. متلونه دخلکو زړغ ګڼل کیږي. په بیلابیلو وختونو او ځاعو او احوالو کې ددوي د تجربو او ازمېښتونو په نتیجه کې منځ ته راغلي دي (۴۵)

دهرې ټولنې متلونه دوګړپوهنې او ټولنپوهنې دپوهانو دشننې لمخې په عمومي توګه نسبي اومطلق ارزښتونه راڅرګندوي. څیړندوي روهي په دې باب کښلي دي:

((دکلتوري بشر پیژندنې (پوهنې) له څیړنو څخه څرګنده شوې ده، چې دهرې ټولنې متلونه ځینې مطلق او ځینې نسبي ارزښتو منعکسوي. مطلق ارزښتونه ګلي اوجهانشموله دي، چې دبشري تاریخ په اوږدو کې دګډو تجربوله لارې زموږ تروختــه

---

(۴۴) عطايي، محمدابراهیم، دپښتوفولکلوریك ادب اکاډیمیکه څیړنه، کابل مجله د ۱۳٦۰ ش کال ٦ـ۷ ګڼه ۵ مخ.

(۴۵) پوهاند عبدالحی حبیبي، پښتو ادب داجتماعي څیړنوله پاره، وږمه، د ۱۳۴۴ کال ۱ ګڼه ۱۴ مخ.

رارسيدلي دي ٠او يوازې دالفاظو او عبارتونو په توپير تقريباً هماغه مفهوم افاده کوي ٠ دغه پول گډ بشري ارزښتونه د زمان او مکان تابع نه وي ٠ بلکه په هره ټولنه کـــــې هروخت او هرځاي د منلوړ وی ٠٠٠)) (۴٦) نوبه همدې اساس ځير ندوي دوست هم کښلي دي چی "متلونه د مضمون له مخې بريدنه منی ٠ اوبه يوه مضمون او مفهـــــوم په بيلابيلو ملتوکی په يو متلونه پيداکيدلاي شي ٠ چی يو تر بله ترجمه او اخستنه ښکـــاري ٠ که څه هم ښايي دخپلو ژبو اصلي مال وي)) (۴۷)

داخبره سمه ده چی دځينو متلونو ارزښتونه هم جهانشموله دي ٠ اويا هـــــــم د نړۍ د بيلابيلو ملتونو دځينو متلونو ترمنځ موضوعی نژديوالی او يو شانوالی موجود وي چی دا هم دخلکو او ملتونو يوله بله سره دارتباطاتو اومختلفو اړيکو دټينگيدوله مخـــې رامنځ ته شوي دي ٠ مگر دي ترڅنگه هر قوم اوملت ځانته خپل ځينی خاص متلونـــه او اصطلاحات اوگړنی لري ٠ چی په نورو هغو پورې اړه نه لري ٠ اوبه خاصه توگـــه هماغه ملت يا قوم پورې اړه پيداکوي ٠ اود هماغه ملت دژبی مال وي ٠

زموږ په گړنی ادب اوژبه کی موجودمتلونه هم دغه ځانگړنه لري ٠ چی ځينی يې د نورو ملتونو او قومونوله متلونو سره دتشابه ځينی خاص وجوه لري ٠ مگر ځينی نوريې داســـــې متلونه دي ٠ چی خاص دپښتنی ماحول اومعاشـــرې زيږنده دي ٠ اوداستاد خــــادم مرحوم (۱۳۵۸ شمري ) په قول د دغو متلونو په مرسته د پښتو دحياتی فلسفی څــــــراک هم ايستل کيداي شي (۴۸)

زموږ ليکوال غلام محی الدين افغان چی له خلکو سره محشورسړی و ٠ نو دخلکـــو دحکمت او عقـــليت دغه عاميانه خو له معنا او مفاهيمو ډکو ويناوو ټولولو ته يــــــــې هم ليچی رانغښتی وې ٠ اودابه يې هدفوو ٠ چی د پښتنو ٠ روحياتی خصايص دخپلـــو خلکو د دغو عامو حکيمانه خبرو له لارې نورته وروښيي ٠ دی په افغانستان کی لومړ نـــی

---

(۲٦) ځير ندوي روهی ٠ په پښتو متلونو کی مطلق او نسبي ارزښتونه ٠ فرهنگ مردم د دريم کال ۴ گڼه ۱۳٦۰ ش کال ۵۱ مخ ٠

(۲۷) ځير ندوي دوست ٠ د پښتو داولسی ادب لارې ۴ ۵ مخ ٠ پښتوټولنـــه ـ کابل ۱۳۵٦ ش کال ٠

(۲۸) پښتو چاپی آثار ۲۳٦ مخ ٠ د ۱۳۵۷ ش کال چاپ ٠ کابل ـ د پښتو دپرمختيا او پياوړ تيا امريت ٠

سري دي، چې دمتلونو ټولولو ته یې هڅه کړې ده . خو داچې د (( روهي متلونه ))
نومې کتاب محترم ترتیبوونکی د دغه کتاب په مقدمه (٤٩) کې دافغانستان دپښتو
متلونو دټولونې لړۍ د مرحوم نوري (١٣٥٢ش مړ ) له هڅوسره سم پیل کړې ګڼلې
دا یوه تیروتنه ده . . . که په افغانستان کې دمتلونو دټولولو او خپرولو په لړۍ کې لومړنی
ګام مرحوم غلام محی الدین افغان وچت کړی، اوبیا ترده وروسته مرحوم محمدعثمان
خان پښتون (١٢٦٥ــ١٣٤٥ هـ ق) په دې لاره کې په برخه کړي دي (٥٠) په منظم ـ
ډول هم په افغانستان کې دپښتو متلونو لومړنۍ چاپي مجموعه د مرحوم نوري مجموعه
نه بلکه د (( پښتو متلونه )) نومې مجموعه ده، چې د مرحوم محمد قدیرتره کـــــی
(١٤٠٠ هـ ق مړ ) او ښاغلي زمریالی په ګډه هڅه ترتیب شوې او دپښتو ١٢٣ متلونه
یکې راټول شوي دي، او تشریحات هم لري دغه مجموعه ١٢٧ مخه په ١٣١٨ هـ ش کال
دپښتوټولنې له خوا خپره شوې ده ( ٥١)

سربیره پردې نوموړي پروفیسور نواز طایرچې د روهي متلونه په مقدمه کې د متـــل
ټولونې په تاریخي سیرکومې خرې کړي، په هغو کې یې داروانښاد مولاناعبدالرحیم
او قاضي رحیم الله مرحوم د هڅو یادونه هم د شلمې پیړۍ پیل کړې ده، مګر دایـــی
نه دي ښوولي، چې د دوی دغه ډول هڅې چیرې خپرې شوي دي ؟

موږ چې دمتل ټولونې په تاریخي سیر خبرې کوو، د هغو خومحدودو نمونو پرتــــه
چې دپښتو ګرامر او قواعدو په کتابوکې مستشرقینو راوړي . په دې برخه کې لومړنـــی
ګام S.S THOR Burn وچت کړی دی، اوپه خپل کتاب BAnnu or our Afghan
Frientern کې یې د ١٢٧٧ په شاوخواکې پښتومتلونه د موضوعی ویش په اساس راوړي
دي . (٥٢) دغه راز د میرا حمدشاه رضواني په علمي هڅو کې هم د متل خوندي کوني یادونه کیږي .

---

(٤٩) روهي متلونه ٩ مخ، د پروفیسورمحمد نواز خان طایرترتیب او تدوین ١٩٧٥،
پیښور ــ پښتو اکیډ یمی .

(٥٠) پښتو مجله ٢ کال ٨ ګڼه ٦ــ٧ مخونه ( ٢٨ متله) ٩ ګڼه ١٥ــ١٦ مخونـــه
( ٣٨ متله) ١٠ ګڼه ٢٢ــ٢٣ مخونه ( ٢٥ متله) ١١ ګڼه ٩ مخ (١٥ متله) .

(٥١) پښتو کتابونه، درازمحمد وینږ لیکنه، ص ٤ ، د ١٣٣٧ ش کال چاپ ــ پښتوټولنه .

(٥٢) بنو یازموږ افغاني سرحد ٢٣١ ــ ٢٥٠ مخونه . د ١٨٧٦ ع کــــــــال
دلندن چاپ .

د دغه ډول هڅو په لړ ۍ کې بله پخوانۍ هڅه د نل .سي . ای . بایل د ه . نومــــوړ ي پهخپل کتاب ((پښتو نکلونه )) کې د پښتو ډیر متلونه له انګریزي ترجمې سره یو ځـــای خوندي کړي دي، او کتاب یې دوهم ځل په ۱۹۳۸ ع کال په پیښورکې دفقیرچنـــــد مهرلعخوا چاپ شوي دي .

دمتلونوبه پخوانیو مجموعو کې بله مجموعه روضة الا مثال د ه چې د مولوي سید احمد له خوا تهوله شوېد ه، او ۶۷۹ متله پکې راټول شوي، اوغلام جیلاني پیښوريد ۱۸۷۵ ع کال دفروري په ۱۷ نیټه کښلې دي . د یادري هیوز یادښت هم پرې کښېکښل شوی دی . دغه نسخه په برټش موزیم کې په ۲۸۳۲ نومره قید د ه (۵۳) تردوی وروسته د یوارمستتـــر فرانسوي (۱۸۴۹_۱۸۹۴ ع) هڅه په دې برخه کې مشکوره د ه، چې د ه په خپـــل مشهور کتاب د پښتونخواد شعرهارویهارکې د نورو فولکلوري موادو ترڅنګه ۶۰ متلونه هـــم راټول او چاپ کړي دي (۵۴)

غلام محی الدین افغان هم په همدغه ډله کې دریږ ي، چې د شلمې پیړ ۍ په پیـــل کې یې د پښتو متلونو د ټولولو خواته هڅه کړ ې د ه . د شلمې پیړ ۍ په راوروسته کلونو کـــې په متلونو لره اوبره پښتونخوا کې او همداراز مستشرقینوډیرکارکړ ی دی (۵۵) چې د ټولـــو تفصیل زماله خبرې نې سره اړ ه نه لري . سربیره پرد ې په متلونو هراړ خیزې څیړ نې هـــم شوې دي . د منظومو متلونو (۵۶) اود متلونو د قصوبه باب هم کارشوی دی .

دغلام محی الدین افغان هڅه خوموږ پخوانیو متل ټولوونکو په ډ له کې د ستاینـــــی وړ وباله . مګرد دې مننې ترڅنګه باید داهم ووایو : د ه چې کوم مواد د متلونوبه نامــــه په سراج الاخبارکې خوندي کړ ي ټول یې متلونه، نه بلکه ځینې ئې اصطلاحات او محـــاوړ ې (ګرنی) دي، چې د ځینو بولګې یې د مرحوم استاد نوري په ((پښتو اصطلاحات او ـــ محاورې)) نوم کتاب کې هم پیداکیږ ي .

دغه ډول ګډوډ ي د پښتو متلونو، او اصطلاحاتوبه ډیرو مجموعو کې لیدل کیـــــږ ي . دمثال په توګه : میجر . جورج . ګلبرتسن ((د پښتو اډیومونو)) په دوه ټوکیز فرهنګ (۵۷)

---

(۵۳) دمیکنزي فهرست، ۱۳۰ مخ، د ۱۹۶۵ ع کال دلندن چاپ .

(۵۴) د پښتونخواد شعرهارویهار ۲۲۹_۲۳۳ مخونه . د ۱۳۵۶ ش کال چاپ، کابل، پښتوټولنه

(۵۵) ګرنی ادب لومړ ی ټوك دعبدالکریم پتنګ تاليف . د ۱۳۵۷ ش کال چاپ ۴۶_۵۰ مخونه .

(۵۶) دخلکوسندرې، دبناغلی رفیع تاليف ۱۲۷_۱۳۲ مخونه ۱۳۲۹، د تاریخ اوادب ټولنه

(۵۷) دګلبرتسن د اصطلاحاتودغه فرهنګ په د وو ټوکونوکې ۱۹۳۲ ع کال په هرتفر د کې چاپ شوی دی . لومړ ی ټوك یې ۴۶۹ مخه دی، اود وهم ټوك یې به ۲۹۷ مخ کـــی پیل کیږ ي اوبه ۹۵۲ مخ کې پای ته رسي بشپړ انګریزي نوم یې په دې ډول دی :

A Dictionary THE PAKKHTO Idiom.

کې په یوځای په متلونه د اصطلاحاتو په ځای راوړي دي ، لکه د لومړي توك په ۳۴۵ مخ کې د امتل (( مارکه هرځو کوز ځي چې غـارته ورشي سم به شي ) ) (۵۸)

یا لکه : (( چې وې غواړې خوله نو خوږنه یې په څه )) په دې کتاب کې د اصطلاح په توګه داسې راغلی دی : (( وې غواړې په دې خولې خوږې به یې په کومې )) اویا هم د امتل : (( موږ ك د سوړې د ننوتونه وېه کونې پورې چـچ وتاړه ))

د اصطلاحاتو په بڼـه ضبط دي ، او داسې نورهم پسې دورواخله . متل او اصطلاح دوه سره بېل شیان دي . باید سره ګډ نه شي . که څه هم تربرن په دې باب کښلی دی : (( د متل له پاره خاص تعریف ورکول مشکل کاردی ، ځکه چې متلونو ، مقولـــو ، شعارونو او نورو اخلاقـي او اجتماعی کیسو ترمنځ کله کله زیات مشابهت د معنی او مفهوم په لحاظ موجود وي . متلونه داسې جملې دي چې د خلکو په منځ کې خاص استعمال لري ، او د یوه مفهوم د تائید او تثبیت په خاطر په خاص ډول استعمالیږي او زما پــــه نظر د اتر ټولو لنډ تعریف دی ، تر هغه وخته پورې چې د ټولنې یو ټولنیز او مشترك مضمـون د ټولو له خوا د عقل او یوهې له مخې سره زیبنلی شوي او نښتیزلی شوي نه وي اولـــــه هغه څخه یوه داسې لنډه جمله رازیږیدلی نه وي چې د ټولو له خوا قبوله شي او په سیمه کې یې ریښې د کلو کلو په تیریدو سره پخې شوې نه وي . تر هغه وخته پورې یې متل نشـــو بللای . د دې له پاره چې متل د خلکو له خوا قبول شي باید په ساده او عامیانه ژبه کې وي . د خلکو په غوږ وښه ولګیږي . په مغزو کې سملاسي ځای ونیسي ، او زړونه یې قبول کـړي . د دې مقصد له پاره په یوه متل کې درې ضروري شیان دا دي : لنډوالی ، مقصد او مفهـــوم ، خوږ والی )) (۵۹)

دغه لوړه لیکنه تریوه ځایه هغو کسانو ته چې متلونه او ګړنی یې سره یوځای د متلونـــو په نامه راوړي دي برائت ورکوي . خو موږ چې اوس د خپل فولکلوریبلابېل ژانرونه پـــــه اکاډ یمیکه توګه څیړو . نو باید هڅه وکړو چې د خپل فولکلور دغه دواړه توکه سره بیل کـړو . او هریو ترخپل سرلیك لاندې وڅیړو . ځکه دغه ځانګـې دواړه سره بېل دي ، د متـــــل په باب خو مو د تربرن تیعریفـونه ولوستل ، نو اوس بنایې چې د اصطلاحاتو او محاورو د ځانګړنو په باب ، د لوی استاد پو هاند حبیبي څرګندونې هم ولولو دوی کښلي دي : (( اصطلاحـا ت

---

(۵۸) د متلونه نومی کتاب په ۱۲۴ مخ کې د امتل داسې راغلی دي (( مار چې غاړله ورسـ ـــ نوسمیږي ))

(۵۹) بنویازموږ افغانی سرحد ، د ډګرمن شیرمحمد کریمی پښتو ژباړه ، نا چـــــــا پ اشــــــر .

ومحاورات تعابیر یست که هرملت موافق به محیط، حیات وعنعنه واخلاق وروحیات خود درزبان خویش می افرینند وبرای اظهار مقاصد خود استفاده میکنند که بذکر محاوره فکر شنونده فوراً بسوي مقصد اصلی منتقل میشود . وبدون اینکه گوینده مقصد خودرا به عبارت صریح بگوید . اصطلاح ومحاوره مخصوص زبان مافی الضمیر وی را ترجمانی میکند .

این گونه مصطلحات ومحاورات جز وقوي ادب وگفتگوي روزمره هرزبان بوده وحاکی از لطافت ومزایای معنوي انست)) (٦٠)

امادا اصطلاح خاص تعریف په دې ډول شوی دی :

((اصطلاح په حقیقت کې دعربي لفظ دی چې په اصل اوریښه کې یې لفظ صلح پروت دی . معنی یې دې ښه کیدل ، موافق کیدل ، موزون او مناسب کیدل ، درجه په درجه سمیدل ، انتخاب کول او خوښول ، دڅه خبرې نتیجه وتل ، دیوې خبرې په وجه دبلې خبرې څرګندېدل . خو خاص معنی یې دې محاوره یاهغه خبره یاکلمه چې دڅېنې خاوندانو دخاصو معنو دپاره مقررې کړې وي )) (٦١)

دا وو دا اصطلاحاتو او متلونو لنډ تعریفونه اود هغوی باب توضیحات چې دمخه وړاندې شول . دا اصطلاح اومتل دبیلتون په برخه کې دپښتو ادب دیوه بل خیر ونکی خبرې او یادونې هم دهیرولونه دي ، ده کښلي دي :((اصطلاح یومحلي رنګ لري ، دمتل اولنډۍ غوندې شهرت نه لري . مګرکله چې مشهورشي نوبیا دمتل شکل غوره کوي . په اصطلاح باندې دټولو اتفاق نه وي راغلی ، بلکه دیوې ډلې اتفاق پرې راغلی وي) ) (٦٢)

پوهاند دوکتورمجاور احمدزیارهم په خپل ((ویي پوهنه )) نومې اثرکې دګړنو ، بولنو او متلونو ترمنځ دتوپیرونو په باب څه خبرې کړې دې .(٦٣) چې په عام ډول تېرې سرې د دغود رې وار و توکونو دبیلتون څرګ ایستلای شي . په دې توګه باید دغه بحث پای ته ورسوو چې مقولې (بولنې) ګړنې (محاورې او اصطلاحات ) اومتلونه یوله بله سره توپیرونه لري ، او زموږ ځوان فولکلور ټولوونکي یې باید دخوندي کولو په وخت کې دبیلتون آرښنسیونه په پام کې ولري .

---

(٦٠) پښتو اصطلاحات او محاورې ، دلوی استاد پوهاند حبیبي سریزه (الف ـ ب مخونه) د ١٣٢٠ شکال . چاپ کابل ـ پښتوټولنه .

(٦١) پښتومجله د ١٩٥٨ع کال ١ ګڼه (دوهم کال) ٠٨ مخ ، پښتواکاډیمی پېښور .

(٦٢) وګورئ : کابل مجله د ١٣٢٢ کال ١٠ ګڼه ٩ مخ . دښاغلي پښتون زوی مقاله .

(٦٣) وګورئ : ویي پوهنه ٥٢ ـ ٥٣ مخونه .د ١٣٦٠ شکال چاپ ، دژبو اوادبیاتو پوهنځی .

دمرحوم افغان دآثارو په باب چې ماته ترکومه ځایه معلومات وو، هغه مې دلې راوړل . ښایي څینې نور آثارې زموږ نورو ښاغلو محققینو ته معلوم وي، چې د ده شپیتم تلین نمانځنې په ویاړ دعلمي پلټنو په ترڅ کې څرګند شي . خوښه چې د ده دآثارو په برخه کې زه ترډې زیات دیادونې وړ بولم، هغه دمرحوم علامه محمود طرزي دغه لاندې لیکنه ده :

(( یك عالم باعلم افغانی نژاد افغانی زبان وطنی ما جناب مولوي غلام محی الدین افغان سرکرده مدرسه دارالمعلمین که بزبانهاي شرقی مانند: افغانی، پارسی عربی وزیاده برآن بزبانهای متنوعه هندوستان مانند اردو، گورمکهی، شاستري، سانسکریت وغیره بدرجه یی که ترجمه بتواند اګاهی دارد . (( معرکه مذهب وساینس )) که جناب غفران مآب شیخ شبلی نعمانی انرا ترجمه بزبان اردو نموده این مرد فاضل افغانی ماهزبان فارسی آنرا ترجمه میکند )) (٦٢)

په (( تاریخ ادب اردو )) کې یې دعلامه شبلی نعمانی (١٨٥٧-١٩١٤ع) تألیفات په دې ډول ښوولې دي :

(( سیرة النبی ( دوه ټوکه ) شعرالعجم پنځه برخې، الفاروق، المامون سیرة النعمان، الغزالی، الکلام، علم الکلام، سوانح مولانای روم، موازنه انیس ودبیر . سفر نامه روم ومصروشام، اورنګزیب عالم ګیر، الجزیه، مسلمانوں کی ګذشته تعلیم، تاریخ اسلام وفلسفه اسلام، حیات خسرو، تنقید جرجی زیدان، مقالات شبلی، رسایل شبلی ( نظم ) دیوان شبلی، دسته ګل، صبح امید دارد و نظمومونومجموعه )) (٦٥)

په دغو تألیفاتو کې خوبه دغه نامه کوم کتاب نشته، ښایي له دغو کتابو څخه یې یو کتاب مرحوم افغان په دې نامه (( معرکه مذهب وساینس )) ترجمه کړې وي . اویا ښایي دغه بل اثروي، چې د تاریخ ادب اردو مولف ته به نه وي معلوم .

افغان دپښتو په تذکرو اوادبي تاریخونو کې :

غلام محی الدین خان افغان په سراج الاخبار کې دخپلو همدغو خپروشوو آثارو په بنا په پښتو تذکرو کې معرفي شو، اولومړي ځل یې په (( تاریخچۀ شعر پښتو )) کې لنډه پیژندنه داسې وشوه : غلام محی الدین خان افغان از ادبای فکور وفضلای دانشدوست افغان است که درعصر حبیب الله خان درکابل سمت مدیریت دارالمعلمین راداشت ودرمکاتب هند تحصیل نموده، وبه اغلب السنه هندي

(٦٢) مقالات محمود طرزي ٦٢٥ مخ .
(٦٥) تاریخ ادب اردو، درام بابوسکسینه، دنشر برخه ٩٢مخ، دلاهورچاپ .

واقفیتی داشت. جنابش یک افغان غیور وروشن فکری بوده که جمع از همراهان وشاگردان خودرا درکابل به فکر وطنخواهی تربیه داده است. غلام محی الدین خان مرحوم عشق به زبان ملی داشت وشعرش درآن زبان میسرود . وافغان تخلص مینمود . که بعض از اشعاروی در دوره های سراج الاخبار انتشار یافته است)) (٦٦)

په دې لنډه لیکنه لومړی ځل دافغان نوم دپښتو ادبی څیړنو ته لاره پیداکړې ده .ترد ې لیکې لس کاله وروسته پوهاند رښتین دده سوانح نسبتاً بشپړې وکښلی او دمړګ نیټه یې هم ورولیکله، دنثر او نظم نمونې یې هم ورکړې(٦٧) .

دنوموړي پوهاند رښتین دلیکنوله مخې دافغان لنډ کیوسوانح آریانا دایرةالمعارف (٦٨) ته هم لاره پیداکړه، اویه افغانستان نومی کتاب کی یې هم ځای ونیو(٦٩) .

او استادجلالی مرحوم (١٤٠٠ هـ ق مړ) په دغو دوو کتابو کی دپښتو دادب تاریخ دلیکنو لنډ یز راوړ ی دی، او هغه څه چی په دې کتاب کی دافغان په باب راغلی ده لنډ کړي دي، اویه لنډه توګه یې په دایرة المعارف کی اخیستی دي.

د دایرة المعارف ترکښنو دری کاله وروسته استاد عبدالروٴف بینوایه اوسنی لیکوال (٧٠) کی دافغان بشپړې سوانح راوړ ې، او ددغه کتاب ترخپریدو دوه کاله وروسته چی پښتانه شعراء دریم ټوک چاپ شو، په دې کتاب کی دافغان په ژوند هراړخیزه څیړنه شوې، اودژوند بیلابیلی خواوې یې تریوه حده روښانه کړي دي . او دده دژوند په باب یې شتو تذکرو اوادبی تاریخونو کی تردغه کتاب بل معتبرماٴخذ تراوسه مانه دی لیدلی (٧١)

---

(٦٦) تاریخچهٔ شعر پښتو، دلوی استاد پوهاند حبیبی، طلوع افغان، ١٣١٥ شرکال ٣٥ گڼه، جوزا .

(٦٧) دپښتو دادب تاریخ لومړی چاپ ١٣٢ـ١٣٣ مخونه (١٣٢٥ شرکال) دوهم چاپ ١٢١ـ١٢٢ مخونه ١٣٣٢ شرکال .

(٦٨) اریانادایرة المعارف ج ٣ ص ٥٩٨، د ١٣٣٧ شرکال چاپ، کابل ، دآریانا دایرة المعارف ټولنه .

(٦٩) افغانستان ص ٢٥٢، د ١٣٣٧ شرکال چاپ ـ کابل دآریانادایرة المعارف ټولنه

(٧٠) اوسنی لیکوال ج ١ ص ٦٨ـ٧٢، د ١٣٤٠ شرکال چاپ ـ کابل .

(٧١) پښتانه شعراء ج ٣ ص ٧٧٤ـ ٧٧٧ـ ١٣٤٢ شرکال چاپ کابل ـ پښتو ټولنه .

ترڅو ورسته چې دادبیاتو په برخه کې د پښتو د معاصر ادب کوم کتابونه چاپ دي ، په زیاتروکې د افغان په باب مواد او خبرې شته ، چې د هغو تفصیل به زه د دې سریزې په وروستیو برخو کې ورکړم . بنایي د معارف په ځینو درسي کتابو کې هم د ده په باب څه وموندل شي ، چې سملاسي زما په واک نه دي ، او د وخت لنډوالي دا اجازه نه راکوي ، چې په دغه ډول کتابو کې یې د نامه او آثارو پلټنه وکړم .

((٣))

## افکار ، اخلاق او عادات

د غلام محي الدين افغان پرافکارو ترڅېړلو دمخه باید د ده د عصر تاریخي وقایعو او سیاسي جریاناتو ته یو ځغلند نظر واچول شي .

زموږ دغه شاعر اولیکوال د امیرشیرعلي خان د لومړي پلا پاچهۍ په دوهم کال وزوکید ، او د ده څه مهال وه چې زموږ پرمقدس هیواد انګریزي استعماري لومړی ناتار (١٨٣٩ع) تیرشوی و ، او انګریزانو د نومیالیو افغاني غازیانو له لاسه سخت ماتې لیدلی وه ، او زموږ وطن یې پریښی و . خو خبیثه ارواګانی یې لا سپوڅو او کوږ اګیو امیرانو په ارواوو کې ګډې وې ، او په غیرمستقیم ډول یې دغه هیواد د خپلو ګټو په سیمو کې شامل ګاڼه .

د امیرشیرعلي خان لومړی پلا پا چهي له کورنیو اختلافونو او ستونزو سره مله وه ، او بلې خوا د شرق په زیاترو سیمو کې د یورپي استعمار ناخوالو په شدت دوام درلود .

خوکله چې امیرشیرعلي خان په (١٢٨٥ هـ ق ١٨٦٨ع) دوهم ځل د ټول افغانستان د امیره توګه وپیژندل شو نوبی د اځل ځینو اصلاحي کارونو ، د وطن ابادۍ ، او د پوځ د تقویې او نورو دغه ډول چاروته هڅه وکړه ، سمش النهار په کابل کې په خپرونو پیل وکړ . او هیوادته د مطبعې په راتګ سره ځینې کتابونه هم په پښتو او پارسي ژبو چاپ او خپاره شول ، امیرله ځینو ګاونډیو هیوادو سره د سرحدي شخړو د هوارولو له پاره اقدامات وکړل ، او د تزاري روسیې سفیرې په کابل کې ومانه کابل ته د دغه سفیر راتګ د بریتانوي هند سیاسي حلقې ډیرې تشویش کې کړې . ترڅو چې د افغانستان پر پاکه خاوره یې د دوهم ځل تجاوز هڅه وکړه . (٧٢) انګلیس پوځونه له خپلو بشپړو تجهیزاتو سره ( ١٨٧٨ع نومبر = ١٢٩٥ هـ ق ذیقعده ) د خیبر ، کورمې ، او بولان له لیاروزموږ خاورې ته راداخل شول . امیروارخطا شو . کابل یې پرینبود مزارشریف ته ولاړ ، او هورې د (١٢٩٦ هـ ق د صفر په ٢٩) ومړ . او خلک یې مشره پاته شول . د ښمن په بیړه پرهیواد تجاوزکاوه ، او انګریزي

---

(٧٢) تاریخ مختصرافغانستان ج ٢ ص ١٢٢ ، د لوی استاد پوهاند حبیبي ، د ١٣٤٩ لمریز کال د کابل چاپ .

لښکرې پرمخ روانې وې د لقمحینو سردارانو د امیرشیرعلی زوی شهزاده یعقوب له ۸ کاله بنده وروسته راخوشی کړ ، اود ۱۲۹۶ هـ ق په ربیع الثاني کې یې د امیر په توګه ومانه ۰خو وحشی انګریزي لښکرو په ډیر شدت او وحشت افغانستان ونیو ۰

انګریزانو امیریعقوب د انګریزانو لښکرځی (ګندمک) ته بوته ، او هورې یې د ګندمك منحوسه معاهده برې امضاکړه ( د ۱۲۹۶ هـ ق دجمادي الثاني ۴ = د ۱۸۷۹ع کال د مې ۲۶) ۰ دغه معاهده په عمل کې د افغاني ملیونو لهخوا ونه منل شوه ، (۷۳) او په هرځای اوهرګوټ کې د انګریزي پوځونو پرضد مبارزه پسیل شوه ۰ د دې جګړي له ټولو تشریحاتو سره زما کارنشته ، او جګړې هغه محاذ چې زما له موضوع سره ارتباط لري ۰ هغه د میوند د جګړې محاذ دی ، چې په دغه جګړه کې افغاني قواوې د کندهار او هرات لهخوا یوسره راټولې شوې ، اودهرات او فراه له لارې ګرشک ته راغلې ، او انګریزي پوځونه د جنرال پروس په قیادت د میوند په ګرکې ورسره مخامخ شوې ، ستره جګړه ونښته ، اود ۱۲۹۷ هـ ق کال د شعبان د ۱۷ ورځی ترمازیګره پورې جنګ وشو او په نتیجه کې یې انګریزانو ته سخته ماته ورکړه ، اود انګریزانو پاتې لښکرکندهارته راغی ۰ خو جنرال رابرټس دمیوند په جګړه کې د تس نس شوي پوځ د پاتې شونې دژغورنې له پاره په ۲۲ ورځو کې ځان له کابله کندهارته ورساوه (۹ــ۳۱ــ اګست ۱۸۸۰ ع) اود سپتامبر په اوله یې د سردار ایوب خان قواوو ته زیانونه واړول ، اوخپله سردار هرات ته ولاړ ، اوله هراته یې ایران ته پناه یوړه ، اوبیا د انګلیسانو په حمایت یې لاهوراو راولپنډۍ کې ژوند کاوه (۷۴) نیمورې سردارغازي ایوب خان په خپل هیواد کې زیات لیوالان درلودل ، چې د دغو هواخوهانو له ډلې څخه یې یو هم زموږ شاعراولیکوال غلام محی الدین افغان و ، چې په ۱۲۹۸ هـ ق کال کې یې له خپلې کورنۍ سره ایران ، سرحدي سیمواوځوانی هندته لاړ او په لاهور اوراولپنډۍ کې له نوموړي سردارغازي ایوب خان سره محشورو *

---

(۷۳) په دې باب مفصل او مستند معلومات پوهاند دوکتور حسن کاکړ د یوې مقالې په ترڅ کې د آریانامجلې د ۱۳۶۰ ش کال په ۲ ګڼه کې راوړي دي ( قیام صدد و د وسال قبل کابل ) ۰

(۷۴) دغه غازي اونومیالی سردار د ۱۹۱۴ ع کال د اپریل په ۱۷ د ۱۳۳۲ هـ ق کال دجمادي الاول په ۱۱ نیټه وفات شو ، اومزاریې دپیښور د ښار جنوب ته د سید حبیب په مقبره کې واقع دی ۰

( تاریخ مختصر افغانستان ج ۲ ص ۱۲۶ )

* د افغان د مهاجرت په باب مفصل ترضیحات د ستر افغاني محقق استاد پوهاند بینوا په لیکنه کې راغلي

ده په خپل هیواد، ایران او هندوستان کې دخارجي متجاوزو قوتو ناروا وې، او
عامونه لیدلی وو، اودیوه با درك اوحساس پښتون په توګه پرټول شرق او عالم اسلا
باندې داروپایي وحشیالوله مظالمو اوتاړ اکونو خبر و، له خپل وطن او دخپل
وطن اوخلکو له ترقۍ سره یې اورنۍ مینه درلوده، دوطن دآزادۍ اوترقي مفکوره
یې په زړه کې وه، داماني افغان دلیکنو له مخې ( دمخنیو برخو کې راغلی ده)
ده په پخواني هندوستان کې دعلم او کمال دحاصلولو ترڅنګه سیاسي سرګرمي
هم درلوده .

کله چې دامیرحبیب اللهخان (۱۳۱۹–۱۳۳۷ هق ) دامارت په دوران کې
بیرته هوادته راستون شو(۱۳۲۴هـ ق) . دنویو اوعصري زده کړو ترڅنګه یې سیاسي
مفکوره هم له ځانه سره درلوده . کله چې د ۱۳۲۷هق کال دصفرې په ۱۶ نیټه
مولوي محمد سرور واصف مشروطه غوښتنې دنهضت دجمعیت دمشر په توګه په سیاسي
مبارزه لاس پورې کړ . نوموړی دغه شاعراولیکوال هم ددغه نهضت ملګري شو . دغه مهال
په هیواد کې دمشروطه غوښتونکو شمیر دریوسووتنو ته رسید، اویه بیلابیلو کوچنیو
جرګوکې سره یوځای شوي وو، او هغه ملګري به په دغو کوچنیو جرګو کې سره یوځای کیدل
چې یوله بله به یې ښه سره پیژندل . دهرې کوچنۍ جرګې غړي به په خپلو کې سره
راټول شول، اوله دغې کوچنۍ جرګې څخه به یې یو رئیس اویو منشي وټاکه . دغو کوچنیو
جرګو یوله بله ارتباط نه درلود . خود ټولو جرګولوی رئیس مولوي محمد سرور واصف و .
اودکوچنیو جرګو رئیس به تل له نوموړي مولوي سره لیدل . نوموړی مولوي سربیره
پردې چې ددغه نهضت لوی رئیس و، دیوې کوچنۍ لس کسیزې جرګې رئیس هم و .
په هغه کوچنۍ جرګګۍ کې دغه لاندې کسان شامل وو :

(۱) میرسیدقاسم دجرګې منشي (۲) مولوي غلام محی الدین افغان، چې دهمدغه
میرسیدقاسم خان له ویناووڅخه دده په باب داسې کښل شوي دي : ((مولوي غلام
محی الدین خان قندهاري معلم مکتب حبیبیه که خانواده او در پشاور از جمله
فراریان جمعیت سردارمحمد ایوب خان فاتح میوند بود . وی دراسلامیه
کالج پشاور تحصیل کرده بود . مرد مجرد، آزاد وخوش مشرب بود .
درسرای پشاوریها درشوربازارمیزیست،رفقا همیشه دراطاق او جمع میشدند .
که شکل کلوبی را بخود گرفته بود گاهی درآنجا

دیکچه پزانی وشطرنج می کردند وگاهی به مناظرهٔ علمی ادبی وسیاسی می پرداختند )) (۷۵)

(۳) عبدالجلال خان کندهاري چې دنومړي افغان دتره زوی وء ۰ اودامیر حبیب الله خان دامارت تر پایه په شیرپورکی بندي وء ۰

(۲) پروفیسور غلام محمد میمنګی (۵) مرحوم محمداکبرخان (٦) استاد محمدانور بسمل (۷) مولوي مظفرعلی خان (۸) مرحوم حافظ عبدالقیوم (۹) لعل محمدخان (۱۰) میرزا عبدارزاق خان (۱۱) مولوي محمد سرور واصف، چې پاچاته دغه نهضت اودنهضت دغړو دخبر اوراپور له رسیدوسره سم ونیول شول او له دوه ورځني بندهٔ وروسته په ۱۳۲۷ هـ ق کال له خپلو ځینو نورو خپلوانوسره اعدام شو ۰ (۷٦)

ددغه نهضت په باب له نورو تشریحاتو سره زما څه کارنشته، او یوازینی هدف می داوء چې دمولوي غلام محی الدین افغان دافکارو اوسیاسی مبارزو سیرېکی څرګند کړم ۰ خو څه چې په دې برخه کې ویل غواړم دادي چې : د (( افغانستان درمسیر تاریخ )) په ۷۱٦ــ۷۲۰ مخونو کی چی ددغه نهضت په باب څه ویل شوي تیروتنې او تحریفات لري ۰

افغان دیوه مفکراوسیاسی پوهی دخاوند شخصیت په توګه تل دسیاسی اوملی مبارزو خواته میلان درلود ۰ تردغه نهضته وروسته یې هم داستعماراوظلم پرضد په سیاسی مبارزو کې برخه اخیسته ; په پښتانه شعراء کی کښلی دي :

---

(۷۵) دمیرسید قاسم خان لغمانی ( وفات سه شنبه دحوت ۲۲ــ۱۳۵۷ ش کال ) له وینااو څخه دپښتونیار په قلم دکاروان دورځپانی د ۱۳۵۱ ش کال دچنګابن د ۱۸ نیتی په ګڼه کی خپره شوې مقاله ( نهضت مشروطه خواهی یك حرکت ملی وافغانی بود ) ۰

(۷٦) وګورئ ! دافغانستان تاریخی پیښرلیك دلوي استاد پوهاند حبیبي ص ۲۲۳ ــ د ۱۹۷۴ ع کال چاپ ــ کابل دمولوي محمد سرور واصف دمړینی نیټه دکندهار مشاهیرنومی کتاب په ۲۲۹ مخ کی ۱۳۲۴ هـ ق ښوول شوې ، چې سمه نه ده اوبیا دغــی غلطــی دفرهنګ زبان و ادبیات پښتــو ج ۱ ص ۵۳۷ تــه هم سرایت کړی دي ۰

(( وایي چې: په لومړي لوي جنګ کې (۱۳۳۲–۱۳۳۶هـ ق) کې چې مو تلفـــه

قواوو په منحنی شرق کې د ترکانو او عربو ترمنځ د نفاق اوروګلاوه اود عثماني حکومـــت

مقبوضات یې یو په بل پسې لاندې کول. (افغان) د اسلام د جان نثارانو مجلـــس

ته د استعمار او انګلیس د مخالفت یو قرارداد وړ اندې کړ، چې هلته د ټولو غړو لـــه

خوا په خپلو خپلو وینو لاس لیکونه پروشول. د ده دې اقدام د انګلیسانو مخالفـــت

ته مسلمانان ویاړول، او هر هرځای، د استعمارچیانو پر ضد د ترک موالات او مخالـــفت

ږغونه پورته شول ) ) (۷۷)

افغان د امیر حبیب الله تر دوري وروسته د اعلیحضرت غازي امان الله خان (۱۳۳۷ ــ

۱۳۴۷ هـ ق ) په زمانه کې کابو دري کاله ژوندی و، د غه وخت چې د هیواد آزادي ګټـــل

شوې وه، او د ده ارمان ترسره شوې و، نوی دیوه منور پښتون په توګه د هیواد د ترقـــۍ

فکرونه په سرکې ګرځول په دې باب استاد د اوي په یوه لیک کې کښلي دي: (( ...د هري

جمعې په ورځ د ده مرحوم په کورکې موږ اجتماع کوله، چې یو تفریحي کلوب و، علاوه پر موسیقي

او شطرنـــج پر وطني مسایلو مو هم مذاکره او مشاوره کوله، مرحوم مولوي فتح محمد خـــــان

ارسلا او مرحوم عبدالجبار خان ارسلا هم د دې کلوپ اعضا وو، رئیس د کلوب مولـــوي

غلام محی الدین مرحوم و، زه هم یو عضو وم ) ) .

د دې لوړو مدارکو په استناد ویلی شو، چې مرحوم افغان دیوه نوي او استعماري ضـــد

فکر خاوند سړی و، او د وطن له ابادۍ او ترقۍ سره یې کلکه مینه درلود.

د عاداتو او اخلاقو په باب یې د دې لیکې په بیلابیلو برخو کې خبرې وشوې، خوځـه

چې په دغه خصوص کې استاد دوکتور روان فرهادي کښلي هغه هم دلته راوړل وړ دي،

ده لیکلي دي: (( پدر من مولوي عبـــد الباقي که شاګرد دارالمعلمین سراجیه بود. تازنده

بود ستایش دانش، نیکودلی، و وطنخواهی، صراحت لهجه وبارستګی، استاد خـــــود

(غلام محی الدین افغان) رامیکرد. سرپرستی دارالمعلمین سراجیه باوسپرده شده بود.

دري رابه لهجه پښتو سخن میګفت ) ) (۷۸)

---

(۷۷) پښتانه شعراء ج ۳ ص ۷۷۲
(۷۸) پښتو چاپي آثار. ص ۲٦ . د ۱۳۵۷ ش کال چاپ.

کله چی دړیو او ادبیاتو دپوهنځی له خوا دافغان دآثارو دټولو لو چاري درسمی لیك په ذریعه راوسپارل شوي ، نومی ددغه کار سرته رسونی لــــه پــا ره دسراج الاخبار کلکسیو نونو ته مراجعه وکړه ، او د دغه اخبار له پاڼو مـــــــی د ده منظوم او منثور آثار او فولکلوري راټول کړي مواد ولیکل . بیامی په دې ډ ول په دريو برخو وويشل :

(۱) لومړ ۍ برخه منظوم آثار

(۲) دوهمه برخه منثور آثار

(۳) دریمه برخه پښتنی فولکلور

دهرې برخي تشريح غوښتونکی ځایونه می په لمن لیکونو کی تشریح کړل ، اودافغـان په پیژندنه ، ژوند لیك ، دآثاروپه پیژندنه می سریزه وکښله ، اوخه می چې په دې برخوکـی په وس پوره ووه ، هغه می ترسره کړل . ښایی زما څیړ نی او گرویزنی اوشننی په دې خصوصکی نیمگړې وي ، ښایی نورپوهان او درایی خاوندان يې بشپړ کړي .

دمتن څیړ نی داساساتو لمخی زما زیار ويوست چی ده ده آثار دسراج الاخبا ر په پاڼــو کی دنورو ښاغلو لیکوالوله خپروشوو اثارو بیل کړم . ځکه دمتن څیړ نــــی آرونه داحکم کوي چی : دمتن ترتیبوونکی باید ترهرڅه دمخه داثردلیـکوال په نامه کی تحقیق اوڅیړ نه وکړ ي . ځکــه که دغه ډول سرتیري وش ښایی په یوه نامه دډیـرو نورو شاعرانو آثار دیوه سړ ي په نامه نشرشی (۷۹)

نوزه هم ده ده دآثارو دټولولو پــه برخه کی له دغی ستونزې سره مخامخ وم ، ځکه په سراج الاخبارکی د ((افغان)) په تخلص دریو شاعرانو اشعار نشر شوي دي :

(۱) دمولوي صالح محمدخان هوتك ( ۱۳۳۹ هـ شرمړ ) په سراج الاخبـا ر کی لومړ نی خپاره شوي اشعار د ((افغان)) تخلص لري .

(۲) دهمدغه غلام محی الدین افغان اشعارچی دشعر په مقطع کی دافغـان له تخلصه سربیـره دهرشعر په پای کی خپل بشپړ نوم د ((احقرالعباد غــــلام - محی الدین افغان )) په بڼه هم ورسره راوړ ی دي ، هره لیکنه اوشعریې نیټــــه هم لري .

(۳) دتبیین الواجبات دناظم ملاعبدالباقی افغان کاکړ (۱۳۳۴ هـ ق مړ) پارکی چی زیاتره ددغه اخبار په اوم نشراتی کال کی خپاره شوي دي .

---

(۷۹) تحقیق النصوص ونشرها ، دعبدالسلام هارون ، مخ ۴۲ ـ ۴۴ ، د ۱۳۸۵ هـ ق کال د قاهرې چاپ .

نویه همدي اسا سرما هڅه وکړه چې دمرحوم مولوي غلام محی الدین په آثارو کې دنورو آثارو او اشعار ورګډنه شي ．

دهمدغسې نه پاملرنی له امله له بده مرغه دمرحوم افغان ځینو سوانح لیکونکو دمولوي صالح محمدخان هوتك اشعارچې دسراج الاخبار په دریم او څلورم خپرنی کال کې زیاتره د ((افغان)) په تخلص چاپ شوي ．دغلام محی الدین افغان ګڼلی دي، اودې ته یې نه دي پام شوی چې شاعر د شعر په مقطع کې د ((افغان)) تخلص له کارولوسربیره د شعر په پای کې د (ص ．م) په مخفف بڼه خپل نوم هم راوړي دي．

دمثال په توګه زموږ درنو محققینو دغه پارکې :

شکرشکر باغ موخپل باغوان موخپل دی　　　ګل موخپل بهارموخپل بوستان موخپل دی

دغلام محی الدین افغان بللی دی، اوداځکه چې دپارکې په پای کې ي راغلی دي :

عجب عصر دی "افغانه" نظروکه　　　ژبه خپله قلم خپل بیان موخپل دي(٨٠)

او ددوي دې ته نه دي پام شوي چې شاعر دهمدغه پارکې په پای کې ګڼلی دي (ص．م) همدارنګه ددغه شاعرځینی نوري منظومې هم د "افغان" تخلص لري، لکه دامنظومه :

څه احوال دی پردنیا　　　عبرت واخله اې دانا (٨١)

اما دپارکې په پای کې (ص．م) راغلی دی، ایه ځینو نوروپارکوکې یې هم دغه کار کړی دی.

دغې موضوع ته لومړی ځل دپښتو ځوان لیکوال ګران زرین انځور پام شوی دي، او د کابل مجلې د ١٣٥٦ ش کال (٨٢) دلومړۍ ګڼې دیوې مقالې په ترځ کې یې دغه موضوع روښانه کړې ده(٨٢)

او دایې ګڼلی وه چې دغه شعر دمولوي صالح محمدخان دی．خو داچې دغه شعر دغلط مشهورپه بنه زموږ په ادبي تحقیقاتو کې دغلام محی الدین افغان په نامه ضبط شوی وه، اوده لومړی ځل داخبره سمه نه وه بللی اوشعریې داصلي خاوند په نامه ضبط کړی وه．نو په یرو بناغلیو تړپوښتو لاندی نیولی وه．اوپاالاخره دې ته اړ شو چې دسږ کال دزیږي په یوه ګڼه کې دغه موضوع نوره هم پسې روښانه کړي او ځینې نوراسناداومدارك هم په دې برخه کې راوړي (٢٤ ګڼه ١٣٦٠ ش کال)

---

(٨٠) (٨١) سراج الاخبار څلورم کال ٣ ګڼه ٩ مخ ．دهمدې کال ٦ ګڼه ٣ مخ ．
(٨٢) کابل مجله د ١٣٥٦ ش کال ١ ګڼه ١٠١ـ٠٦ امخونه دپښتوپه پرمختګ کې دسراج الاخبار ونډه．

دده خبــبره په دې خصوصرکی سمه ده ځکه دغه شعرد مولوي غلام محی الدیــن افغان نه ، بلکه دمولوي صالح محمدخان هوتك دي اوپه دغو لاندې دریودرســـی کتابو کی چی دغلام محی الدین افغان په نامه قید دې ، درانه لوستونکی دې لـــه هغو کتابو څخـــه د استفادې په وخت کی دغه پار کی دغلام محی الدین نه ، بلکـــه دمولوي صالح محمدخان وبولی :

(۱) دپښتو د ادبیاتو تاریخ دځلورم ټولګی له پاره (۸۳)

(۲) دپښتو معاصر ادبیات (۸۴)

(۳) دپښتو ادبیاتو تاریخ اوسنی دوره (۸۵)

---

(۸۳) د دغه کتاب ۲۳ــ۲۲ مخونه ، د ادبیاتو د پوهنځی چاپ ۱۳۴۷ ش کال ، ا و د دغه کتاب په ۲۳ مخ کی چی وطن ته دافغان د بېرته راتګ نیټه ۱۳۳۰ هش ښوول شوې هغه دې په ۱۳۲۲ هـ ق سمه کړه شی ۰

(۸۴) دغه کتاب په ۱۳۵۷ ش کال د ادبیاتو او بشري علومو د پوهنځی له خوا چاپ ــ شوي دي ۰

(۸۵) د دغه کتاب ٦۹ مخ ، د دغــه اثر په ٦۸ مخ کی هم هیواد ته دده د بیرتـــــه راتګ نیټه ۱۳۳۰ هـ ق ښوول شوې ده ۰

د ۱۳٦۰ ش کال د ژبو او ادبیاتو د پوهنځی ګستنري چاپ ۰

دمرحوم صالح محمدخان هوتك پر دغه غزله میرزا عبدالرحیم رحیمی (۱۲۵۴ـ۱۲۹۹ هـ ش)

یو پښتو مخمس هم ویلی دی، چی دپیل بند یې دلې راوړو:

پر ثنا دخپل مولا کړم چی اوطان می خپل دي

که خیبر دي که کونړ دي که لغمان می خپل دي
قندهار، مزار، هرات، هم بدخشان می خپل دی شکر شکر باغ می خپل باغبان می خپل دی
گل می خپل بهار می خپل بوستان می خپل دی(۸۶)

مگر څېړندوي عبدالله بختانی چی په پښتانه شعراء کی دمیرزا عبدالرحیم رحیمی دشعر

دنمونی په توگه ددغه مخمس بندونه راوړي نو دنمونی تر راوړلو دمخه کـــــازي:

(( دده دپښتو شعر دنمونی په توگه به دده دیومخمس، و بنده وړاندې کړو، چـــــی

دغلام محی الدین افغان پر غزل یې لیکلی دي) ) (۸۷) له پښتانه شعراء څـــــلوړم

ټوك څخه داستفادې په وخت به هم ښاغلی لوستونکی دغه تیروتنه په پام کی نیسی، او د

غلام محی الدین افغان نوم به په صالح محمد هوتك سم کړي.

سربیره پر دغو څېړنو مادغې مجموعې متنونه دمتن څېړنو داوسنیو روښانـــــو

پرېنا وڅېړل اوله بیلابیلو خواوو می تحقیق پر وکړ. دمتن څېړنی اساسات حکـــــم

کوي چی هرمتن باید په تاریخي، اجتماعي، ادبي، اوژبنی لحاظ وشنل شي. سربیره او د

گرانو لغاتو دحل له پاره ویې پانگه او په پای کی دمتن څېړونکی داخپــــو نو نیولیك بــــاید

ورسره مله وي.

---

(۸٦) سراج الاخبار ٦ کال دوهمه گڼه.
(۸۷) پښتانه شعرا ح ۴ مخ ۲۰۸، د ۱۳۵۷ شکال چاپ، کابل پښتو ټولنه.

د مولوي غلام محی الدین افغان

# آثار

ټولوونکی

د سرېزي ليکوال

ما همدغو آرونو ته په پاملرنه دغه نيمگړې سريزه پروکښله ۰ او د متن گـــــرا ن لغات په لمن ليکونو کې د قاموسونو په مرسته حل کړي دي او د وخت د لږ والي له املـــــه مي د خپلوا خځونو ځانگړي نيوليك (فهرست) جوړ نه کړ ۰ خو ټول اخځونه مـــــــي په لمن ليکونو کې د هراخځ د مخونو او چاپ کال له څرگندونو سره ښوولي د ي ۰

اوسنۍ متن پو هنه داغواړي چې متن څيړونکی بايد په متن کې د راغليـــــو قرآني آيتونو، حديثونو او عربي مقولو په باب څيړ نه وکړي ماهم په دغه متن کې تر خپله وســـــه دا کار کړی د ی ۰

دافغان د آثارو د دغې مجموعې ځينو مواد و په خپله تشريحات د رلود ل ۰ ما هــــــم هغه تشريحات کټ مټ راواخيستل * متن پو هنه داغواړي چې متن بايد د شاعــــــــر يا ليکوال په خپله ژبه او يالهجه وي ۰ ځکه که د شاعر ژبې او يالهجې ته زيان ورسول شــــــي او متن څيړونکي يې لمخې ل ذوق سره سم کړ ي ۰ دا کار به د شعر او نثر کيفيت ته زيـــــا ن ورسوي ۰ نو ځکه چې افغان کند هاري و ٍ ، ليکې او شعرونه يې پښتود لويديځ گړ دود ـ ځانگړ نې لري ، نو ما هم د دغه گروپ د ځانگړ تياوو خيال د ده په آثارو کې ساتلی د ي ۰

---

* د کتاب د متن په لمن ليکونو کې د سراج الاخبار حاشيې په (س) ښوول شوي دي ۰

# لومړۍ برخه

# منظوم آثار

((۱))

## درحمان بابا پرغزل مخمس

څوك چې ورك له خپل وطن وي څه به خوب كا
ستمګرچې (۱) ګلبدن وي څه به خوب كا
مبتلاچې په شيون(۲) وي څه به خوب كـــــا
هغه څوك چې دی مين وي څه به خوب كا
چې فرهادغوندې كوهكن وي څه به خوب كـــا
داجهان دې پاته تانه هم له مانــــــــــه
دقضاچاره خونه شي له لقمانـــــــــــــه
څوك خوكړاي نه شي علاج دمرګ دوانه
هرنفس دسرې تله دې له دنيانـــــــــــه
چې (۳) همه ساعت رفتن وي څه به خوب كا

---

(۱) چې = چې يې

(۲) شيون : ويره ژړا ، انګولا (افغان قاموس ۲ ر ۳۸۵)

(۳) اوسنی ليكوال : چې يې . په دې شكل كې نيم بيتې سكته پيداكوي . پخپلـــه ((چې)) دكندهاري ګړدود له مخې د ((چې يې)) پرځای كارېــــږي . په لرغونومتونو كې هم موضوع همدا ډول ده .

چې مفتون سې څوك اوربل ددمه په زړه سي ناآشنا له خواز مخوبه بې ليمه سي
عاشق نه دی که بې یاره دی ویده سي درقیب له جوره خوب دعاشق نه سي
دهغو چې یار دېمن وي څه به خوب کا

بې کس مې هرګز نه سوه غمګساره (۴) آزاده لکه لاله یم له ګلــــزاره
تماشې ته مې عالم راحې بې شمــاره چاونه ویل چې له څه یې بې قراره
چې په اورکې یې وطن وي څه به خوب کا

له خوښۍ اومسرت نه خنداکیــــزي په بیلتون کې خندانه وي ژړاکیــزي
خوب بستر باندې سره داشناکیــزي چې عاشق له خپله یاره جداکیــزي
که د سلو شپو ګرمن وي (۵) څه به خوب کا

زه په شان دکواکب شب زنده داریـــم هګزنه یم سترګې پټې بیقراریـــم
هرسحر زه له ژړا سره دوچاریـــم ناست به یم (۶) کې داشنا خپل دیرافګاریم
څوك چې داسې رازعمجن وي څه به خوب کا

دچاکارچې شکایت سي له هجرانـــه ممکن نه دي چې بیرون سي له نیرانه (۷)
امیدمه کړه خوب خنداسوه پاته تانـــه خوب خندا به بیغمې کیزي ((افغانـــه))
چې یې بل آتش په تن وي څه به خوب کا (۸)

---

(۲) غمګسار = انچه که غم رابببرد ، غمزدای ، یادوست ، رفیق (۲) محبوب ومعشـوق
غم لیرکوونکی ، له سرې نه غم وړونکی . (معین ۲ ر ۲۲۲۱)
(۵) ګرمن : مصیبت زده ، اندوهګین ( پښتوقاموس ۲ ر ۱۰۱)
(۶) یم : دریا ، دردریااندا ختن وقصد کردن ( منتخب ۱ ۶۵) ، سین ( افغـــا ن
قاموس ۳ ر ۶۱۷)
(۷) نیران : اور( افغان قاموس ۳ ر ۵۴۳)
(۸) دغه مخمس ۷ بنده دی . دسراج الاخبارافغانیه په پنځم کال ۱۹ ګڼه ۵-۶ مخونو
کی چاپ شوی دی . مګر استاد بینواپه اوسنی لیکوال لومړي ټوك ۶۹-۷۰ مخونـو
کی د دغه مخمس یوازې ۵ بنده راخیستی دي . دپښتانه شعراء د دریـــم
ټوک په ضمیمه ۹۰۷ مخ کې د دغه مخمس ۴ بنده راغلی دي .

بسم الله الرحمن الرحيم

(( وعلمك ما لم تكن تعلم وكان فضل الله عليك عظيما ))(۹)

(( قصيدهٔ افغان (۱۰) درفضيلت علم ))

(( ۲ ))

مسدس

الهی احسان خو ستادی بی حساب    چی دعلم را ښکاره کړی بی حجاب
نمر دعلم دي روښان تر آفتاب    چی سړی په ده افضل دی له دواب
په حرمت دمحمد هم داصحاب
رانصیب کړي علم ټول ته اي وهاب

. . .

عظمت نه سم کړای دعلم زه بیان    علم فضل دی اونو ر دی دسبحان
خیر کثیر وایی په بیه شاه سره قرآن    (( رب زدنی علماً )) ورکړ رب نشان
خپل حبیب ته چی دی دوی عالیجناب
هم دعایی په هروقت په هرساعت وه مستجاب

---

(۹) ایة : ۱۱۳ اسورة النساء ۴ ، ایت.

(۱۰) دقصیدي تعریف د تحول شعرپارسي نومی کتاب په ۷مخ کی زین العابدین موتمن داسی راوړی دی .(( قصیده درلغت یعنی قصد شده ودراصطلاح ادبی به شعری اطلاق میشود که بیش از پانزده یا بیست بیت مشتمل باشد . وکلیه ابیات نیز در وزن وقافیه از بیت مصرع نخستین پیروی نماید . قصاید زبان پارسی معمولاً بین سی وپنجاه بیت است وګاهی ازین بیشتر وکمتر هم میشود . پیداست فزونی یاکمی تعداد ابیات بستګی به موضوع قصیده واقتضای حال ومقام وحوصله وتوانایی ګوینده ومخصوصاً حروف قافیه دارد . ګاهی قصاید به دوو یست بیت ودرصورت بسط وتوسعهٔ قوافی به زیاده از آنهم بالغ ګشته است )).

دغه پارکی چی په سرکی یی ورته دقصیدهٔ افغانی سرلیک ورکړ ن ۱۰ اویاتري لاندې یی (( مسدس )) ورته لیکلی دی . قصیده نه بلکه (( مسدس )) دی ، اوادبی فنون په کتاب کی یی دمسدس تعریف داسی راوړ ی دی : (( مسدس هغه شعرته وایی چی هربند یی شپږ مسرع وي او داول بند ټولی مسری یی په یوه قافیه ویلی شوي وي اوبیا د هربند شپږمه مسرۍ داول بند دقافیی سره موافقه وي . کله دمسدس اطلاق په هغه نظم کی کیدای شی چی څلور مسرع یی په یوه قافیه وي ، اودوه مسرع یی په بیله قافیه ویلی شوي وي )) ( ادبی فنون استاد بینوا ص ۷۰ ــ پښتوټولنه ۱۳۲۶ ش کال ) مګرد هینښتیاخبره خوداده ، چی مرحوم افغان هم دغه نظم قصیده بللی ده . اومسدس په وروستی بند کی وایی : (( دا آخره قصیده ده په پښتوکی ))

رسول وایی وعالم سري په شان استغفار ورلره کیږي په آسمان
په صباح اوبه مساوي هر آن عالمان دي دنبیانو وارثان

تل عالم وي په هرکارکی فتحیاب
هم عالم په هروطن کی وي شاداب

. . .

چی طلب دعلم کړي شمر(۱۲) داد ی وي تسبیح یې ذکر بحث یې غذا دی
او تعلیم یې صدقه دی هم سخا د ی څه شك نسته چی سلاح دي په اعدا دی

دایی لږ کوتی اثر دي له دریاب
چی زیلن(۱۳) په هوا کی لکه غراب (۱۴)

علم تا لره انیس دی په وحشت کی هم رفیق دی هم ملګری په غربت کی
مفرح (۱۵) د طبیعت دي په خلوت کی هم څراغ دهدایت دی په ظلمت کی (۱۷)

کړي لاري نه په ده سی اجتناب
هیڅ عالم نه کړي پروا له انقلاب

ترقی لري په علم انحصار تمدن په علم باندي برقرار
تجارت حرفت به ګرم سی بازار عالمان که چیري وکړي داګفتار

علم او هنر باران کوي لکه سحاب
جهالت سړی پرېباسي په ګرداب

---

(۱۲) شمري = شمریږي
(۱۳) دغه نوم دافغان په یوه بل پارکی کی چی دسراج الاخبار د ٦ کال په ۲۱ ګڼه کی چاپ شوی د ((زویلان)) په بڼه راغلی ۰ او په حاشیه کی یې ورته کښلی دي :
((جهاز هوایی که ایجاد آن خاص در جرمنی شده))
(۱۴) غراب : د دریابونو د کښتینویو ډول (غیاث ۳۰۹)
(۱۵) مفرح : فرحت ورکوونکی ، خوشحالی او خوښی بخښونکی (منتخب ۵۵۸)
(۱٦) خلوت : تنهایی ، یوازې والی (افغان قاموس ۲ر۲٦٤)
(۱۷) ظلمت : تیاره (سپیڅلی پښتو ۱۹۳)

ترقۍ څښتن يورپ دی په دا آن          كه تراوچ رسيدلی دی جاپان
امريكه كه ده په مثل ديوانـــــان          راز د ټولو دی په علم کی پنهان
ته يقين كړه هم باوركړه په دې باب
وور عالم (۱۸) وته رستم سی لاجواب

په جاهل باندې عالم وي ډير فاضل          مساوي كله عالم وي د جاهل
بی له علمه سړی نه کيږي کامل (۱۹)          د جاهل كارونه واړه وي باطل
په‌خپل كاركی جاهل كله وي كامياب
بل به*دی مدام اخته وي په عذاب

التجاكړم ربه ته سی مهربـــــان          په اسلام ته فضل وكړې بی پايان
ترقۍ مالك كړې ته ټول افغانان          په علوموکی يې ته كړې عالمان
له خپل فضله له كرمه اې ستاره اې وهاب
نه خو دوی كړې په هركاركی فتحياب (۲۱)
زموږ شاه چی مهربان ډيرتربدردی          دې حامی د ترقی اود هنـــردی
په دا شان سره ساعی علم پروردی          له كوشش‌نه يی مكتب د ايوشـمردي
استقلال ته يی بيداركړ وموږ لەخواب (۲۲)
هم ظلمت دا ستبداديی كړ بی تـــاب

---

(۱۸) وور: كوچك ، وړوكی (پښتو قاموس ۲ ر ۳۲)

(۱۹) اصل: بی له علم سړی نه كيږي نه كامل
* اصل: بل كه
(۲۰) التجا: ننوتل ، ننواته ، پناه گرفتن (افغان قاموس ار ۱۳۳) غوښتنه ارزو (پښتو — پښتو تشريحی قاموس ار ۸۹)

(۲۱) فتحياب: بريالی .
(۲۲) اصل: استقلال ته يی بيداركړ وله خواب

د آخره قصیده ده په پښتو کـــی | چی تقدیم سوه په حضور د پښتونوکی
بیا به نه ستایم نور څه زه په شعروکی | د ((افغان)) دعاده تل په نیموشپوکی

ربه ته موکړې باد شاه په خپل مقصدکی کامیاب (۲۳)
بلی حاضر مجلس ته ورکړې ثوابونه بې حساب (۲۴)

((۳))

ترجیع بند ذوالقافیتین

---

موږ که نه تعلیم یافته وای د آثار | هم کامل وای په صنعت کی د کاررزار
اوس زموږ به وای په دنیاکی اقتدار | هم به زموږ وای ډیرهیبت په ټول کفار
کل جهان دی رسیدلی ومقصود ته په مدار | مگرموږ خولاتراوسه یو په خوب کی دسهار
د الاشکرچی اعلیحضرت دی ډیرهوښیار | ورنه موږ به له پخوانه ووډیرخـــــوار
کل علمونه حاصلیږی په به قرار (۲۵) | که تعلیم کړی طالبان زموږ د وطن په تلوار (۲۶)
په یوه کتاب پسی گرځی خوار و زار | طالبان زموږ د وطن په هر دیـــــار
که په فقیه او اصول سی خبـــر دار | بیا به خبرنه وي دعربو په اشعـــــار
که چیری زده کړی په منطق کی څه گفتار | دی به فقه گوری په نظرد استحقار (۲۷)
که دی حاصل کړی په حسابکی اختصار | بیا به نورعلمونه دی گنی بی کـــــار
نه خبرله مساحت او اقلیدس ځی زمایار | نه خبرله طبعیاتنه واقف وی له اخبـــار
ارسطو منطق پسی گرځی دی بسیـــار | د بیکن (۲۸) منطق تمبی دی په تلوار

---

(۲۳) اصل : رب ته کړی زموږ بادشاه په خپل مقصدکی کامیاب
(۲۴) معرف معارف لومړی کال ۳گڼه ۲۰، ۲۴ مخونه ۱۲۹۸ ش عقرب ۰ د افغـــــان دغه مسدس د اعلیحضرت امان الله خان په ور اندې په هغه غونډه کی د امیـــــر محمد شاگرد له خوا لوستل شوی و ۰ چی داعدادیه تعلیم دسندونواوهماغـــــه ښوونځی ته دبیرغ د ورکولو به ویاړ جوړ شوې وه ۰ غونډه د ۱۲۹۸ ه ش کال د میزان په ۱۴ د چهارشنبی ورځ جوړه شوې وه (معرف معارف ۲ کال ۳ گڼـــــه ۱۰ مخ )
(۲۵) اصل : کل علمونه حاصلیږی په دی دهرکی په قرار = نیم بیت پنځه هجاوې زیاتوب لري ۰
(۲۶) اصل : تلیـــوار
(۲۷) فرانسس بیکن (۱۵۶۱–۱۶۳۶ع) مشهورانگلیسی فیلسوف دی ۰ د لنـــــدن په ښارکی اوسیده ۰ مشهور اثرئی ((نوی ارغنون)) نومی (تشکل وتکامل افکار — فلسفی ۱۹۸۰ ص ۷۹–۸۱)

علوم که مغربی که مشرقی دي رایج کار
کفارچې پرې خبر دي نه کوي ځنې عار
دی خووي د نصارا له حرفتونه پرهیزگار
په داشان کله پرهیز کا څوك له کار
استعمال د صنفوي[۲۹] په داشان کړی دي په جار
چې مدام د ده په سروي دانګریزدسان دستار
دا یې نتیجه د بې خبرۍ ده طلبخوار
چې دی نه کړي هیڅ پروا دزمانې په کاروبار
که څوك ده ته بې خبر وایې دحسد سی په ګذار
مګردی په حقیقت کې بې خبر ګڼې تلوار
الغرض په سلوکسوکې څوتن دي بیاپه شمار
چې دوی وتړي په سرد فضیلت یو سپین دستار
بیا هم هغه عالم فاضل به نه وي خبردار
چې والي دچین موڅوك دی هم پادشاه دتاتار
نو به ده له شکوې دعالمانو صد هزار
ولې عالمان دي دنبیانو میراث خوار
په ایذا(۲۹) اوحسد نه دی زما ګفتار
زه محب دعالمانو هم د دوی یم خدمتګار
هغه څوك خو کافرکیږي به دې کار
چې دی ګوري علمانه خوارو زار
اوس خو داضروري دی چې موږ زده کړو له کفار
داهنرد فلاحت او تجارت هم کنبت وکار
په فرانسې کې دومره پوښکوڼ (۳۰) وي بې شمار
کلمه وي زموږ د وطن دولې بیخ یادچنار
په فرانسې کې له بسوې نه حاصلیږي دامقدار
لکه دلته دجریب اودقولې وي پیداوار

۲) ایذا : ځوروول، ربړ ول، اذیت کول ( افغان قاموس ۱ ر ۱۷۵)
۳) پوښکوڼ : سماروق ( پښتو قاموس ۱ ر ۱۹۹)

د زمکو زراعت په فلاحت دی انحصـــار
بلکه ټول جهان په زراعت دی موغز ار
زه چی نظروکړم په حالات د زمینـــدار
بی واره په ژړ اسم په صداسم په کو کـا ر
دوی خوبی تهذیب اوبی هنردی هم نادار
بلکه بی خبردي په صنعت د کښت وکـــار
لاتراوسه یی هغه درانه جغونه هم یی سپار
بل لاداچی نه پوهیږي په سادین (۳۱) هم په شدیار (۳۲)
دوی مدام وي پریشانی په داسی کا ر
چی دوی مړه کړي يوتربله په يوه ليه جوار
گرچی دهقانان موږ هنردي هم پرخـوار
بيا هم سل ځله بهتردي له عابده رشوت خوار
نه کړي راشيان (۳۳) خوبی رشوته د چاکا ر
گویا دوی لره حلال دي دامــــــردار
رسول دی لعنت کړی په راشی باندې باربار
هم په ده باندې عقاب دی هم عذاب دی دقـهار
په دنيا او په عقبی به يی رسواکړي کردگـــا ر
هغه څوك چی رشوت اخلی له مسکين عاجز خوار
نوره څه مه وایه ((افغانه)) په باب د دې مر دار
ولی اوس خودوی دي عزتمند او باوقـــار (۳۴)
څه کړم زور می نسته په فلك سفله پــــــور
ورنه ما به په يخ کړی وی څيگرهم خپل تنور (۳۵)

۱ حقرالعباد غلام محی الدين افغان
۳ ربيع الاول سنه ۱۳۳۵ هـ

---

(۳۱) سادین: زمین شيار شده (پښتو قاموس ۱ ر ۵۹۴)
(۳۲) شدیار: زمین برای زراعت اماده شده (افغان قاموس ۲ ر ۳۲۶)
(۳۳) راشیان = رشوت خواره
(۳۴) دغه بار کی ډیري گوډی اوهجایی کمبوت او زیاتوب لري، سکتی هم پکی شته، تریوه حده می جور کړ، خوبیا هم ټول سم نه دي.
(۳۵) دغه بار کی د سراج الاخبار د ۱٦ کال له ۱۱ گڼی ۵ـ٦ مخونو څخه اخیستل شوی دی.

بسم الله الرحمن الرحیم

«رب لا تذر علی الارض من الکافرین دیاراً» (۳٦)

((۴))

زما زړه د وینو ډک دی بې قرار ... نن ستم د کافرانو شو بسیار
د رسول درود په فضل وکړي ربه ... په امت د خپل حبیب بزرگوار
ستمونه د کفارو چې حساب کړم ... د وی تیر سوي دي له حد وله شمار
د وی په زړه کې رحم نسته په اسلام ... جوړیږي په یرا که جوړیه اهل النار
طاقت نه لرم چې لنډ بیان یې وکړم ... د وی جفا له ستمونه څه اخبار
ترسایانو کافرانو وو قصد کړی ... چې د مسلم دې پاته نه سي یو دیار
سي اخراج مسلمانان ټول له پوره ... حلقه تنګه د پر دوي سي د پرکار
وروبه ورودي ایشیاکی (۳۷) هم مفقود سي ... مګر څوک چې د صلیب (۳۸) سي پرستار
د صلیب بیرق د پاسه په مکه سي ... یودي وسي په مدینې تاخت وتاتار (۳۹)
مسلمانان چې نه وي بیا به نصاري سي ... په رضایا په جفا وار ه کفار
نن یونان باغي په حکم د سلطان سه ... سباورځ سرویه* سوه خود مختار
انګریزووي چې خیرخواه یو د بلوچو ... په داچل یې کړ قبضه د دوی دیار
د قلات خان (۴۰) اوس بندي دی په لاهورکی (۴۱) _ څکه د انګریز بلوچستان سه باجګذار (۴۲)

---

(۳٦) ایة: ٦ ۲۲ سوره ، نوح ، ۷۱ ایت.
(۳۷) اصل: ورو ورودي په اشیاکی
(۳۸) غیاث (ص ۲٦۴) د صلیب په باب کښلي دي: بفتح اول وکسرلام به معنی سخت وبه معنی بردارنهاده شده وچوبیست که ترسایان درزنار بندند. وبه فارسی انرا چلیپا گویند. ونوشته اند که این معرب چلیپ است... وجه ش آنکه چون عیسی علیه السلام رابر آسمان بردند. طرطوس نام شخص راکه هم شکل عیسی بود بردار کشیدند. وبعد این واقعه ترسایان آنراعیسی پنداشتند شکل داربا عیسی ازچوب تراشیده شده ودرگلو اویختند، وتعظیمش کردند.
(۳۹) ناتار: تاراج جبر وستم. زحمت ومشقت (پښتو قاموس ۲ ر۳٦۳)
(۴۰) د قلات د خانانو اوپر بلوچستان باندې د انګریزانو د تسلط پېښې ډېر تفصیل ته اړه لري چې زه یې په دغه لمن لیک کی نشوای ځایولای (د تفصیل له پاره وګورئ! بلوچستان د ملك صالح محمد نهړي ۲۱٦ مخ نه وروسته.

(۴۱) اصل: که

(۴۲) اصل: څکه دانګریز سه بلوچستان باج ګذار: ججه

ورکو ونکی (سپیڅلي پښتو ص ۲۸)

* سرویه: په بالقانا توکی د یوې سیمې نوم دی (دلوی استاد په منښه)

مراکو کې چې د وروزوسره جنګ وه          اوس فرانس په کښې عزیز دی بې بیکار
په ایران کې هم دغسې حال ښکاریږي          چې ټول شوي ګرګان دي په مردار
سریب یې نن مسخر الجیریا کړه          هم تابع داسې سلطان د زنګبار
د انګریزو په فریب په داوینا کښې          چې خیرخواهان یو داډم د ټول تبار (۴۳)
هیڅ مطلب نور نه لرونه په خپل زړه کې          زموږ ته تاسو حوا مور وه آدم پلار
اعانت (۴۴) لره راغلي یو له لیرې          د خوارانو کړو مدد برادروار
غرض دوی ځان نمایان کړې په ښه شان          دوی خو ظالمان لکه لیوان دې پرېمکار
ډرمنان چې یوځل پرېوځي په رمه کښې          لحاظ نه کړې د کبار او د صغار
فلسطین چې په قبضه کې د اسلام دی          په اسلامیو کې د دې اسلام وي برقرار
په مسیح زما قسم چې دوی خواهان دي          چې حلاق غونډې موږ کاندي په دار
د اپخوا صلیبي جنګونه نه وه (۴۵)          په موږ باندې له یوه په دې ناتار*
د سلطان صلاح الدین په زمانه کښې          ټول یورپ چې یورشلم کړه حصار
له کفاروا کثر مړه سوه په میدان کښې          نور سوه خلاص په هزیمت (۴۶) او په فرار
نه قصور وه د اسلام په باب لیکلې          چې روضه یې د امام کړه ګوله بار
بیا جنګ وه د طرابلس په افریقه کښې          مسلمانان سوه شهیدان هزار هزار
نه سپین زیري یې د سلو کالو پرېښود          نه په غیږ کې د مور طفل شیرخوار

---

(۴۳) تبار: خاندان، کورنۍ، ټبر (افغان قاموس ۱/۳۵۳)

(۴۴) اعانت: مرسته کول، یاري دادن (منتخب ۲۴)

(۴۵) صلیبي جګړې هغه جنګونه دي چې د لویدیزې اروپا نصارا قومونو په ۱۱-۱۲-۱۳ پیړیو کې کړې دي. د دغو جګړو اصلي هدف له مسلمانانو څخه د بیت المقدس ژغورل و، او هرڅوک چې به دې جګړې ته ورتلل په ټټر اوږه به یې له سره تو کره څخه یو صلیب ګانده، د صلیب لومړۍ جګړه د فرانس یو واعظ پیل کړه او پېري لښکرې د همدغه هیواد وې. د دغو جګړو د لویدیزې اروپا ملتونه له ختیز و مسلمانو ملتونو سره اشنا کړل او د فرهنګ په خپرونه کې یې هم اغیزه درلوده (آریانا دایرة المعارف ٦ ټوک ۴٦۹ مخ)

*ناتار = تاراج، یلغار (لس زره لغتونه ۷۰۵)

(۴٦) هزیمت: ماته (افغان قاموس ۳ ر ۵۹۰)

چې عمل زموږ بدل شو حال موبل شو
لکه وي وعید (۴۷) له لوري دقهار
ډیرکلي یې خالي کړه له سړونه
عمارات خالي یې وسوه بیا په نار
ستمونه دا تلي څه عجب نه دي
چې لږ حال دانگریزانو کړم اظهار
په ظاهره کې انگریز مهذب تر دی
په باطن کې دوی بدتر دنورکفار
اول دا چې اوس سالارد دوی کنجز دي
چې یې مړ مهدي سورکړی وه په دار
هغه پوپ(۴۸) چې دمسیح قایم مقام دي
مذهبي دوی سردار دی هم یې پلار
چې ده کړی وه بیان ایتالیې ته
چې اسلام دی ډیراشد (۴۹) اغزی دلار
ډیرثواب دی چې خارلرې سی له لارې
هم په لارې کې دې نه وي نور آزار
اتلي داسې استیصال (۵۰) داسلام کړی
لکه سې درووابه دمرغزار
قلمبند به یې زرمه بخره نه کړې
که ته جوړ کړې قلمونه ټول اشجار
دعا دافغان داده اې خالقه
چې دې تل وي ټول دښمن ذلیل هم خوار(۵۱)
((الرویاءالصالحة من المبشرات)) (۵۲)

((۵))

مخمس

څه عجبه خوب وچې مې ولیده سحر
زه یم په یورپ کې اوگرځېږم لروبر
ټول یورپ اخته دي په غوغا په شووشر
یو تربله وژنې په ټوپك وپه خنجر
ماوې دابه ملك وي دسینا (۵۳) یادبربر(۵۴)

---

(۴۷) وعید : ترټنه(افغان قاموس ۳ ر ۵۷۰)
(۴۸) پوپ ـ پاپ . په روم کې دټولو کاتولیکانو مذهبي اوروحاني مشر(پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس ۱ ر۲٦۷)
(۴۹) اشد . ډیرکلك (افغان قاموس ار ۹۹)
(۵۰) استیصال . له بیخه ایستل (افغان قاموس ۱ ر۹۰)
(۵۱) سراج الاخبار پنځم کال ۹ گڼه ۸ مخ .
(۵۲) نیك خوبونه زیري دي .
(۵۳) سینا : یعنی (اپی سینا) واقع افریقاي شرقی . مردم ملك مذکوروحشی وخونخوار وبیرحم می باشند.
در روزهای مهمانی گوشت خام گاوانرامیخورند (س) .
(۵۴) بر بر افریقای شمالی رامی گویند . (س)

ومی کړه بو ښته له یوچانه به مدار
وایه چې دا ملك دا شانتی (۵۵) که دغوندار (۵٦)
دی خویه افسوس اوبه حسرت شویه ګفتار
چې داملك دعاقلانو دانایانو دی بسیار
دا هغه یورپ دي چې دی ځای و دهنر

***

بیامی له هغه نه استفسارکی په داباب
دوی ولی یریوتل دزمانی په دې ګرداب
ده وې حقیقت کی برنګیان وویه شتاب
چې ورك دي مسلمان سی لهجهان نه په عذاب
ځکه اوس خودوی سول په دنیاکی په خطر

***

څوك چې وي مغرور په خپل قوت اوبه حکمت
دی خوبه زر بر یوځی په کوهی کی دذلت
نه بې وي عزت اونه قدرت اونه طاقت
چې لرې مصیبت کا او حاصل کاندي راحت
څوك چې ډیرمغرور وي د هغه خاورې په سر

***

بخت که چاته شاکاکه داناوي دجرمن
خپله دانایی به یې په ځان سی شعله زن
څه به درته وایم دفلك په دوروفن
نه ځینی خلاصیږي له اسیبه مردوزن
سخت ساعت هغه دی چې هوښیارسی کوروکر

***

بیامی دهغه نه په دې شان وکی داسوال
چې کله به ختمیږي په یورپ کی داجنجال
ده وې که چیرې ورك له جرمنیانو سو مجال
یاکه ... سی په دنیاکی ډیرپایمال
یاکه انګریزان سی له قسمت زیروزبر

***

بس خوبه اسلام سی په دې جنګ کی کامیاب
که چیرې کل اتفاق وکړي اسلام ددین په باب
بیا به نه سی په دنیاکی یاره داسی انقلاب
اوس خو ډیرضروردی چې اسلام سی فتح یاب
ولی دښمنان دي په خپل کورکی سره سر

---

(۵۵) درافریقاي جنوبی واقعست . (س)
(۵٦) غوندا : دروسط حبشستان یک قصبه است (س)

بیا هغه ویل چې ته هم ځوك یې په خپل تن
چې دلته یې راغلی او صورت دې دی غمجن
جاوا (۵۷) که سوماترا (۵۸) که بورنیو (۵۹) دی ستا وطن

چې ته داسې بې خبرې د دنیاله خیروشر
**
ماورته بیان کړه خپل اصل نام ونشان

حیرته چې اوسیږم هغه ملك دی دافغان

ډیر دي زموږ پمملك کې عالمان او فاضلان

چې دوی وایی دیورپ وحکیمانو خوا ران

بل موږ یو ډیر ماهر په کارو بارکی د جمدر (٦٠)
***
بیا راته ګویان سو هغه ځوان په دې مضمون

ستا خوهم څه زده دي یا ته هسې یې پښتون

ماویل چې پښتانه خودي په علم کې جیحون

زه یم له هغو نه یو ادنی سړی کړ مون

په اته ژبو پوهیږم درته وایم مختصر
**
یعنی په پښتو او په هندي کې یم ماهر

عربی او انګریزي خوهم پوهیږم په ظاهر

ګورمکی او شاستري ته په ښه شان یمه حاضر

په اردو او په پارسی کې یاره زه یم محرر

نورعلوم هم رامعلم دي برا دره ماش قدر
* *
هغه خوښ خندا او په قهقهه کړه استفسار

ایا تا سو هم پوهیږی په کروزر (٦١) او په طیار (٦٢)

یا که هسې ځان خوستایی د دهلی د پنجسوار

اوس خو عالمان خانه هغه دي بې ګفتار

چې دوی جوړ کې دردناتونه (٦٣) په حکمت او په هنر

---

(۵۷) دربحرمحیط هند یك جزیره کلانست،
(۵۸) سوماترا کذا ،
(۵۹) بورنیو : ازجزایرمحیط کسیر جزیره کلانست ،

(٦٠) یوه ول خنجر دي چې دواړه خواوې یې تیرې وي . (پښتو ـ پښتو تشریحی قاموس ۲ ر ۱۳۰۸)
(٦١) کروز : جهاز جنګی رامیګوید (س)
(٦٢) طیار : بالون (س)
(٦٣) دردنات : جهاز بزرګ جنګی (س)

اوس به درته وایم دخپل شاه علم وهنـــــــر
دی خوښه پو هیږي دخپل قوم په خیروشـــــر
بل داچې نه واقف دی دیورپ په شورشـــــر
ځکه موږ پراته یو لاتراوسه بی خطـــــــر
رب ته مو ساته دوي سی په دې کی دضـــــرر
بل دی ترقی خواه ** دخپل وطن دی بهدي شـــان
چې په ملك کی جاري کړي مکتبونه له احســــان
هرسړي ته اجازت دی چې داخل کی پســـران .
په مکتب سرکاري کې بی تکلیفه بی نقصــــان
هرغریب ته په مکتب کی وظیفه ده مقـــــرر
بل په ملك کی جوړ کړي ** سړکونه هم انهـــار
چې له دوی نه حاصلیږي ددنیاکل اعتبـــار
تجارت د شراکتدی جاري کړي شهر یـــار
چې په ده باندي موقوف دي دجهان کارو روزګار
هم دهرتعلیم دپاره استادان دي میسهـــر
بل داچې موږ نمسی یو ** د طالوت (٦٤) درحقیقت
چې رب ده ته عطاکړی وقوت هم بیرغیـــــرت
هغه ان چې طالوت وکړ په جالوت باندې هیبت
له طالوت سره خوتنه اوکهار ووبه کثـــــرت
مرداری کی جالوت په خپل همت اوبه خپل سخر (٦٥)

---

(٦٤) ترترنولسمی اوشلمی پیړی تراوایلووري په تاریخی تحقیقاتوکی دقدیموتاریخی کتابوبه بنا داویل کیدل چې پښتانه اصلاً سامی نژاده دي . اوحتی پیښوري عبدالحلیم اثرخولااوس هم په همدې نظردی . حال داچی دایوه افسانوي خبره ده هیڅ بول تاریخی کلتوري اوژبنی اساس نه لري . په نولسمه پیړۍ اوحتی په اتلسمه پیړۍ کی ځینو مستشرقینو ثابته کړه چې پښتانه آریایان او پښتو یوه آریایی ژبه ده ( دتفصیل له پاره وګوری اوږمه د ١٣٤٧ شرکـــال ١ ګڼه . دپښتو ادب اصل او منشأ ( دپوهاند دوکتورحبیب الله تـــږي مقاله ١٢ ـ ١٣ مخونه .

(٦٥) سخر : سنګ بلخمان (س)

سلیمان علیه سلام چی وُ باد شاه د کل عالـــــم
د هغه په زمانه کی خو لازیات وه زموږ حشـــــم
ولی چی اصف د برخیاوه وحضرت ته محـــــترم
موږ به ولی ځان نه ستایو په دنیاکی مکـــــرم
هم موږ به په حرمت او په عزت یو ترمحشـــــر

* * *

بل نیکه موعبد الرشید وه(٦٦) یار هسی غازي ځوان
چی مدام به دده نوم وي په دنیاکی نمایـــــان
چی دی هم په خوله اویـــه زبان کی وه یك شـــان
بل دی عالی همت وه په دنیاکی په ښه شــــــا ن
هم په خوی خصلت کی جانه دی وه لکه نمـــــر

* * *

بل خو احمد شاه در دران وه دافغـــــــا ن
په ده باندي قایل دي یاره کل مرهټیـــــــان
بل خو مو شیرشاه ویمثال شیرژیـــــان (٦٧)
له هیبت نه یی روان سه همایون مخ په ایــــران
که بیان یی عدالت کړم ته به پاتی سی ششدر(٦٨)

---

(٦٦) په دغه مخمس کی دافغان له دغه بول یادونو څخه ښرگندیـــــــږي
چی ده دپښتنو دانسابو په پخوانیو کتابوکی پراخه مطالعه درلوده . کـــــوم
مسا یل چی مرحوم افغان ددغه مخمس په دغو دریو بندونو کی بیان کـــــی
دپښتنو دانسابو په زړو کتابوکی شته دمثال له پاره وګوری ( خلاصة الانسا ب
دحافظ رحمت خان بریڅی تا لیف ۰ ۵ـ۴ ۹مخونه د ١٩٧٣ع کال چـــــاپ،
پښتوا کیډیمی ـ پیښور )
(٦٧) ژیان : خشمناك ، قهرآلود ، غصه ناك ( افغان قاموس ٢ ر ٢٣٧ )
(٦٨) ششدر : دکتابی په بول دهغه ځای له پاره اسعمالیـــــږي چـــــی
خلاصون تری ناممکـــــن وي، او ـــــه مجازي معنـــــی : عاجــــز،
حیران، او متحیــــر ( غیاث ٢٤٧ ) .

حیدرخان وه یو افغان باغیرت او باحرمت
چې ده وه حاصل کړی سلطنت په خپل همت
انګریزې وه خارج له هندوستانه په شدت
که چیرې نظام نه وې د انګریزو په مدت
که ټیپو(٦٩) درته بیان کړم هغه هم وه لوی اژدر(٧٠)

* * *

بل مو انګریزانو ته معلوم دی شجاعت
چې دوی وو راختلی ودې ملک ته په غیرت
اکبرخان وه ښکاره کړی یاره دوې وته همت
د ده په همت باندې ډیرقابل دی جرنیل نت (٧١)
انګریزان وې شرمیدلی په دې ملک کی مکرر

* * *

اوچت خود رته وایم چې بیا جنګ وه د میوند
ډیرکفار سول قتل په دې جنګ کی هم په بند
ونیول غازیانو ډیرکفار په خپل کمند
مرداری په تبرکړل په خنجرکړل چند درچند
وې شړل له ملکه په همت دخپل جمدر

---

(٦٩) د ټیپو اصلی نوم ابوالفتح ، فتح علی ټیپو و ، پلاریې سلطان حیدرعلی نومیده ، چې د جنوبی هندوستان په میسورکی یې سلطنت کړی دی . پلاریې له(١٧٦١ـ١٧٨٢ ع پورې اوده له ١٧٨٢ـ١٧٩١) پورې حکومت کړی دی . له انګریزانو سره یې ډیرجنګونه کړي دي(ټیپو د میسوریانو په ژبه زمري ته وایی) سلطان ټیپو د ١٧٩٩ ع کال دمی په ٤ له انګریزانو سره په جنګړه کی شهید شو ( وګورئ ا پښتومجله د ١٩٥٨ کال ١ ګڼه ١٣٥ـ١٣٨ مخونه )

(٧٠) اژدر : ښامار( افغان قاموس ١ ر٧٤)

(٧١) نت : درسنه ١٨٢١ ع وزیرمحمداکبرخان مرحوم درکابل قتل عام انګریزان راکرده بودند . جرنیل ( نت ) ( نات ) درآن وقت درقندهاربود واز خوف وزیرمرحوم جهت امداد انګریزان دران سال بطرف کابل روانه نتوانست(س)

بیاراته گویان سه هغه ځوان په هسی شان
زه درنه پرسان کړمه حکمت د ایروپلان (۷۲)
ته خوراته ستایی خپل نیکونه خپل دوران
ایاتاسوهم څه کړای سی په جواب کی د زپلان (۷۳)
یاکه هسی ځان ته وایی چی موږ یو شیربیر

✲✲✲

افسوز صد افسوز هم افسوز دی صد هزار
چی زه سم لاجواب په حکمت کسی د طیار
ماویل ((افغانه)) اوس همت کړه په خپل کار
وی نیسه له ستونی په داتکی (۷۴) که مردار
زه وم لا په دې کی چی بیدار سوم په بستر (۷۵)

احقرالعباد غلام محی الدین افغان ۲۱ رجب المرجب سنه ۱۳۳۵ هـ ق
((کل من علیها فان ویبقی وجه ربك ذوالجلال والاکرام ))(۷۶)

((۶))

## قصیده افغانی

امیدمه کړه چی همیش به یی خوشحال — په دنیاکی دی هرشی لره زوال
هیڅ یوشی لره ثبات او قرار نسته — دی ثبات د محمد تاتو ډیر محال (۷۷)
پادشاهان د ګذشته زمانو څو شوه — چی د وی و وصاحب د جاه او د منال (۷۸)
خبردارله سکندره کل جهان دی — چی دی لاړ سه له دنیانه بی مجال (۷۹)
لاشی (۸۰) مړسه چی اجل ورده ته راغی — نه په کاری پادشاهی سوه نه اقبال (۸۱)

---

(۷۲) ایروپلان = طیاره (س)
(۷۳) زوپلان = جهاز هوایی که ایجاد آن خاص درجرمنی شده (س) ۰
(۷۴) تکی = له تکه یی = فوراً (س)
(۷۵) سراج الاخبار ۶ کال ۲۱ ګڼه ۲ــ۲ مخونه
(۷۶) ۲۷ سورة الرحمن ، ۵۵ ، ایت ۰
(۷۷) محال : ناممکن ، ناشده ، ناشونی (افغان قاموس ۳ ر ۳۰۴)
(۷۸) منال : هستی ، شته ، جایداد (افغان قاموس ۳ ر ۲۳۹)
(۷۹) مجال : فرصت ، وخت ، مدار ، وار (افغان قاموس ۳ ر ۲۹۶)
(۸۰) لاشی : هیڅ شی ۰ ((لا)) دعربی د نفی ((نه)) علامه ده ۰
(۸۱) اقبال : ضمان کسی راقبول کردن ، وروبه چیزی اوردن ، وپیش امدن ۰
وچیزی پیش کسی داشتن وسعادتمند شدن ، وروکسی به چیزی ګردانیدن ۰
(منتخب ۷۵)

دبابل او نینوا (۸۲) سلطنتونه — داس تیرسوه لکه تیرسی د چا خیال
د برمکو کروفر (۸۳) په داشان تیرسه — لکه تیرسی په خوبنی کی اندك حال
وروره ته که سی فصیح لکه سحبان (۸۴) — اوکه یی لکه یوسف صاحب جمال
اوکه فرد (۸۵) فریدون تاته حاصل سی — اوجمشید غوندی د یجام سی مالا مال
اوکه عقل دلقمان جمله هم ستاسی — معمر لکه دنوح سی ته په کال (۸٦)
اوپه ونه که درازلکه چی عوج سی — اورستم غوندی که ته یی قوی بال
اوپه عدل کی که ته لکه عمر سی — که په حیاکی سی عثمان خوش خصال
اوکه ته په قرائت کی ابن کعب (۸۷) سی — ابوذر غوندی که یی صادق مقال
په شجاعتکی که خالد زوی دولید سی — اوپه خط کی که علی زوی دهلال
الغرض چی مکمل په هر صفت سی — نه دی سیال وی په دنیاکی نه مثال
چی داعی (۸۸) داجل تاوته نازل سی — ته به وکړی له دنیانه ارتحال (۸۹)

ای ((افغانه)) ناصح مه سه ونورچاته
مگرته که سی کابند په خپل مقال (۹۰)

حقیر العباد غلام محی الدین افغان

---

(۸۲) اصل : دبابل اودنینوي سلطنتونه

(۸۳) کروفر : خودنمایی ، کروبر ، دوری (افغان قاموس ۳ ر ۱۱۲)

(۸۴) سحبان : دعربو فصیح خطیب وُ چی دده فصاحت د متل حیثیت غوره کړی او په ۶۷۲ هـ ق کال مړدی .
(المنجد ۲۴۹ معجم الاعلام الشرق والغرب ، نولسم چاپ)

(۸۵) فر : شمشه ، دبدبه ، شان وشوکت (افغان قاموس ۳ ر ۹)

(۸٦) اصل : اوکه عقل دلقمان جمله ستاسی معمرلکه چی نوح سی ته په کال

(۸۷) کعب (ابی بن ـ القاری الخزرجی) د حدیث روایت دی چی دده په صحابه وو ته د قرآن عظیم قرائت کاوه ، د حضرت عثمان د خلافت (۲۳ ـ ۳۵ هـ ق) وخت کښ مړدی (معجم الاعلام ... المنجد ۴۳۹)

(۸۸) داعی : بلونکی (سپیڅلی پښتو ص ۱۲۹)

(۸۹) ارتحال : لیږ دیدل ، لښل ، کوچ کول (افغان قاموس ۱ ر ۶۴)

(۹۰) سراج الاخبار د ۱۳۳۳ هـ ق کال (پنځم کال) ۸ مخ ، ۴ گڼه

زړه زما پورې دی له مینې دوطـــن ‌‌ ‌ خپل وطن ماته عزیزدي ترخپل تـــن
هریو گل مې دوطن پرما پرگـران دی ‌ ‌ ترکشمیره، ترپاریسه، ترلنــدن
شیرین ځان مې په شیرین وطن فـدا دي ‌ ‌ زه خودارنگه فرهاد یمه کوهکـــن
گلستان مې دوطن لادرکـتــارد ي ‌ ‌ خارستان دي دوطن راته گلشـــن
دوطن په حمایت(۹۱) کې ځان مباح(۹۲) دي ‌ ‌ په امینی کی لازم دی سرباختـــن
چې دچاپه سرسوداد وطن نـه وي ‌ ‌ سرد ده وي مستحق دبریــــدن
چاپه زړه کی چی جنون د وطن نه وي ‌ ‌ د هغه زړه خدای همیشه لري غمجـــن
که څه پیر(۹۳) دي په جهان کی عزتونه ‌ ‌ پیرعزت دي په خدمت کی د وطن (۹۴)
ساکنان دخپل وطن چی څوک غیربولي ‌ ‌ هغه غدار(۹۵) دزمانی دی هم دښمـن
دملت ودین سراج اعلیحضـــرت دی ‌ ‌ په جهان کی لکه نمر دی دی روشـــن
هسی شان ترقی شوې د ده په عهد کی (۹۶) ‌ ‌ چی په کاروي د وي دپاره خوزمـــن (۹۷)
مدرسی اومکتبونه اوس جاري دي ‌ ‌ دهرعلم، دهرکسب، دهرفـــن
ښه توپونه اوس جوړیږي په کابل کـی ‌ ‌ استغنا موسوه له گروپه دجرمــن
هم اخبارموشایع کیږي په وطن کـی ‌ ‌ پیرمرغوب لکه محبوب ښه مزیــــن

---

(۹۱) حمایت: ساتنه، نگاهبانی (منتخب اللغات ۱۸۳)
(۹۲) مباح: جایز گڼل شوي، حلال گڼلی (غیاث اللغات ۳۹۵)
(۹۳) اصل: که پیردي په جهان کی عزتونه

(۹۴) په اوسنی لیکوال لومړي توک ۶۹ مخ کی دغه پارکی همدومره راغلی دي. نـــوره برخه مادسراج الاخبار د ۴ کال د ۱۷ گڼې له ۴ مخ څخه رانقل کړه، دپښتانـــه شعراء دریم ټوک د ضمیمې په ۹۰۷-۹۰۸ مخونو کی یې هم اته بیته راوړل شـــوي دي.

(۹۵) غدار: (۱) لنډ پاري (۲) درغلی، دروهلی، د رغلنی، خائن (افغــــان قاموس ۲ ر۴۶۷)

(۹۶) اصل: که

(۹۷) زمن: په دو وزوروونو، روزگار، وخت، زمان (منتخب اللغات ۲۷۷)

بومدیر (۹۸) یې چې جامع دکمالات دي     خداي دې دي سالم ساتي، له هرحزن(۹۹)
واقعات موچشم دید سوه دهرښهر     که بیکن دي، که لندن دي که برلن
اخردعاد ((افغان)) داده اې صاحبه
چې اسلام صاحب دجاه(۱۰۰) کړي ذوالمنن(۱۰۱)

«۸۰»

دحمن بابا پر غزله مخمس

---

جاروتې سم ترنامه راسه راسه     په هجران کې یم ناکامه راسه راسه
زما ورد (۱۰۲) په صبح وشامه راسه راسه     اې زما زړه آرامه راسه راسه
سروقده گل اندامه راسه راسه

واړه خلق دې صنم مدح خوان دي     هم له لاسه دې خواران سینه بریان دي
ستاله حسنه یې رونق واړه خوبان دي     هم همه واړه خوبان دې مقتدیان دي
دهمه واړو امامه راسه راسه(۱۰۳)

پلرار سوې سه ستاله جسنه دخوبانو
ولې ته یې غزال (۱۰۴) چشم هم مطلوب یې دشا هانو
ایمان وړ ونکې دشیخانو دپیرانو
یې تانسته څه حرمت دعاشقانو
دعشاقو احترامه راسه راسه

***

مهجور زړه خوله فراقه زیاتي چوي
په هغه باندې گول د رحم نه پرېښوي
چې په سرې غمونه پریراتوي
خدازده بیا به هسې وقت وي که به نه وي
زه ویریږم له ایامه راسه راسه

---

(۹۸) له مدیرڅخه مراد محمود طرزي (۱۸٦۵-۱۹۳۳ع) مرحوم دی.
(۹۹) حزن : غم، اندوه، نول (افغان قاموس ۲ ر ٦۲)
(۱۰۰) جاه : قدر ومنزلت (منتخب ۱۷٦)
(۱۰۱) ذوالمنن : دنیکیو خاوند (فرهنگ عمید)
(۱۰۲) ورد : هغه دعا چې هره ورځ یې په تاکلي شمیر یا اندازه په تاکلي وخت کې
ویل کیږي (دفواید لغتنامه دبهارلس)
(۱۰۳) دمخمس دغه بند په اصل کې نه برگد وه وه ما په لوړ دول جوړ کړ.
(۱۰۴) غزال = آهو بره، وبه معني آفتاب نیز ارند (غیاث ۳۱۰)

په دروغوهسي ته ولي ويناكـــــري

دوصال وعده هميشته په فرداكــــري

خواه مخواه خندا پساعاجزشيداكــــري

نن هنگام دي كه وفاكري كه جفا كـــري

چاره نه سي له هنگامه راســـه راســه

***

اتئ محبوبه رايت قامته خم ابرويـــــــه

لب شكره دندان گوهره شيرين گويـــه

نازنينه ماه جبينه ستـــم جو يــــــه

پري رويه سنبل مويه پري خويـــــــه

عنبـــر بويه لاله فامه(١٠٥) راسه راســه

***

داجهان كله مكان دانبساط دي (١٠٦)

بلكه دى دمسافرويورباط دي(١٠٧)

په هرلوركى غم موجودمفقودنشـــاط دي

مبارك د دوومينو اختـــــلاط دي(١٠٩)

تله دي تله دي له جهانه راســه راســه

---

(١٠٥) فام : لون، رنگ (غياث ٣١٥)

(١٠٦) انبساط : غوړيدل، ويړيدل (افغان قاموس ١ ر ١٤٥)

(١٠٧) رباط : پړاو، مسافرخانه، منزلگاه (افغان قاموس ٢ ر١٦٣)

(١٠٨) نشاط : خوښي (منتخب ٦٠٩)

(١٠٩) اختلاط : مخلوطيدل، مذاكره، صحبت (لغات عاميانه ١١)

يخ كابل كې مې په زړه بله لمبه شـــــوه
له فراقه مې سينه آتشكده (۱۱۰) ســـوه
ماغريب لره قاتله دې عشوه (۱۱۱) ســـوه
شپه لابريز ده رڼا ورځ راباندې شپه ســـوه
د ((افغان)) ماه تمامه راســـــه

احقرالعبادغلام محى الدين افغان (۱۱۲)

۱٦ ذي الحجة الحرام سنه ۱۳۳۴ هـ ق

«۹»

بې كمال دباكمال كله همســــــردى | هم قيمت كله گوهرسره حجردى
باكمال سړى په مثل دپادشاه دى | په ظاهره كه مفلس او قلندر دى (۱۱۳)

كه لباس د بې كمال وي د زربفتـــــو
دابې محل دي (۱۱۴) د حرير (۱۱۵) په خپله خردى
كه لباس دباكمال وي دكرباســـــو (۱۱٦)
كمال ده لره خلعت دي هـــــم زيـــوردى
څوك چې نه لري كمال وا وره «افغانه!»
كه غني وي لاخو تانه مفلس تـــــردي (۱۱۷)

---

(۱۱۰) آتشكده : اورتون . دوهي (افغان قاموس ۱ ر ۹)
(۱۱۱) عشوه : نازه فريب ، حركت معشوق كه دل عاشق بدان فريفته شـــــود (غياث ۲۹۸)
(۱۱۲) سراج الاخبار شپږم كال ص ٦٤ گڼه . دغه مخمس په اوسني ليكوال لوسړي توك كې هم رااخيستل شوي ، مگرناقص پنځه بنده دى (۷۰ـ۷۱ مخونه ) دپښتانه شعراء دريم توك دضميمې په ۹۰۸ مخ كې يې هم پنځـــه بنده راغلي دي .
(۱۱۳) قلندر : مجرد وگوشه نشين ، ملنگ (افغان قاموس ۳ ر ۷۰)
(۱۱۴) محل ـ دخاروي دشاه كپړه (لته) زل ، جول ، په يوه كاكړۍ لندۍ كې راغلي دي :

مورد ې محل پلار دې گونـــــج
له چاپيداسوې شين خالـــــج
(پښتوږبه ٦ ر ۱۵۰)

(۱۱۵) حريره : (۱) ورېښمينه جامه (۲) ورېښم (افغان قاموس ۲ ر ۱۱)
(۱۱٦) په دې ځاي كې كرباس دخمتا په معنى راغلى دى . ددې كلمې په باب دډېرو تشريحاتو اومفصلو معلوماتو له پاره وگورئ (كابل مجله د ۱۳٦۰ كال ۹ گڼه كرباس ، دفاضل استاد پوهاند ژشادليكنه ۳۳ـ۴۳ مخونه)
(۱۱۷) دغه شعر دپښتانه شعراء دريم توك له ۷۷۷ مخ څخه واخيستل شو . دغه غزله دسراج الاخبار پنځم كال ۱۵ گڼه كې راغلى ده .

# دوهمه برخه

# منثور آثار

## حالات خوشحال خان ختک

بطور اختصار از کتب متفرقهٔ افغانی وفارسی نوشته شده

خوشحال خان ولد شهباز خان ولد یحیی خان ولد ملك اکوخان قوم ختك ساکن ملك پور (۱) المعروف به سراي ۰

### ولادت خوشحال خان :

درسنه ۱۰۲۲ هـ چونکه قوم ختك از قدیم باقوم یوسفزایی عناد وعداوت داشت وهنگامه کارزار همیشه درمیان ایشان گرم میبود، ازین سبب پدرمع اجداد خوشحال خان درجنگهاي مردم یوسفزایی به قتل رسیده اند ۰

خوشحال خان درزمان سلطنت شاهجهان ازجملهٔ اکابر دولت اووخان قوم خود بود، هرگاه اورنگ زیب پدر خودرا محبوس ساخت خوشحال خان ملازمت

(۱) استاد دوست محمد خان مومند ( ۱۳۵۹ شپږ ) د تاریخ مرصع په نوتونو (۱۳۳ مخ ) کی کښلی دي : (( سراي اکوړه دخوشحال بابا موږ لد اوسکن دي، چې دبابا غورنیکه ملك اکوړ خان ودان کړي وه، ملك پور بـه یې هم ورته ویل )) ۰

راخیر باد گفته به وطن اصلی خود مراجعت کرد (۲)
وبه عزت وحرمت تمام اوقات خودرا به سرمی گذرانید . چونکه خوشحال خـــــان
نزد شاهجهان نهایت مقرب واز هواخواهان او بود اورنگ زیب به سبب خوف که مبادا
خان مذکور کدام فتنه برانگیخته شاهجهان را از قید اورها کنـــــد اورنگ زیـــب

---

(۲) دمرحوم افغان دغه خبري هم له تاریخي متونوسره مطابقت نه لري . په دې برخه کې استاد کامل مرحوم دخوشحال خان دکلیات دمقدمې په (٤ ــف) مخونو کې کښلي دي :

((کله چې شاه جهان د ۱۰٦۷ هـ ق کال د ذي الحجې په ۷ نیټه د ور وبولو ښند یدلو په مرض داخته کید و په وجه د سلطنت دکار او روزگار څخه عاجز شو ، او نتیجه داچـــې د ده په زامنو کې د تخت او تاج له پاره جنګ ونښتو ، مشر باد شاهزاده داراشکوه او دویم بادشهزاده شجاع خان له وو ، او دریم او څلورم بادشاهزادگان یعنې اورنگزیب او مراد بخش سره ملګري وو . په دې جنګ کې اورنګ زیب کامیاب شو ، پلار یې چـــې د داراشکوه طرفدار و ، بندي کړ و ، دارا یې وژلو ، شجاع یې ورک کړ و ، مراد ســـره هم اورنګزیب وران شو لومړي بندي او څو کاله وروسته یې وواژه . دی باد شاه شـــو او د باچاهۍ د نیولو په دوران کې خوشحال خان چې له داراشکوه خفه و ، پښتونخوا ه کې د اورنګزیب مرسته وکړ ه . خپل تره فیروزخان یې د بهاکوخان مقابلې ته چـــې د دارا ملګري و ، ولیږ ه . فیروز خان بهاکوخان ته شکست ورکړ و . دبهاکو خـــــان ورور سیدخان په جنګ کې وم ، اوبها کوخان پخپله ژوبل شه ، دې نه پس نورو باغـــي یو سفزو سره هم مقابلې وشوې ، د هغوي سرکوبي وکړ ي شوه . په ۱۰۷۰ هـ ق کـــال خوشحال خان د تیراه په مهم ولاړ او څه موده پس چې د باغیانو سرکوبي وشـــوه . نو خپلې علاقې ته وا پس راغلو او بیا له یو سفزو سره په جنګ جګړه ولګید و ، او د هغـــوی پرخلاف یې ښې کامیابۍ حاصلې کړې . دغسې په پښتونخوا کې هم د نوي حکومـــت د وقار د قایمولو د پاره خوشحال خان ښه کار او خدمت وکړ و )) .

ازین جهت قصد حبس خوشحال خان راکرد (۳) وظاهراً برای او چنان نوشت :

چونکه شما یك شخص دانسته ولایق می باشید همچنانکه درعهد شاه جهان عزت وحرمت داشتید در دربارمن نیز شمارابه همان قسم عزت ومرتبه عطاکرده خواهد شد . لهذا باید که شما حاضر دربارفیض آثار پادشاه مغلیه شوید .

خوشحال خان با وجود کمال ودانش به تحریر اوفریفته شد ودرسنه ۱۰۷۴ هـ ق از مسکن خو بطرف دهلی سوای جمعیت کثیرروانه گردید ـ چون به پشاور رسید صوبدار پشاور فوراً اورا به قرار فرمان اورنگ زیب که قبل ازین برای او رسیده بود محبوس کرده با او گفت اگرشما مبلغ ۴۰ هزار (۴) روپیه برای من بدهید شما را رهامیکنم ورنه بطوریك بندي بحضوراورنگ زیب پیش خواهد شدید ـ خوشحال خان به خیال اینکه دروقت شاه جهان خدمات بسیارکرده ام شاید اورنگ زیب علاوه از رهایی به لحاظ حقوق خدمات سابق به مرتبهٔ بزرگ خواهد رسانید ـ ازین سبب برای صوبدار مذکور

---

(۳) دخوشحال خان دقید او حبس په باب لکه دغس نور ډیر افسانوي روایات په کتابو او مقالو کی راغلی دي، چی زیاتره یی له تاریخی متونو اووقایعو سره سرنه خوري هرچا په دې باب یو څه کښلی دي . خو په دې برخه کی کره سند د تاریخ مرصع خبري دي او د دغه متن په شهادت او دحینو نورو مؤ رخینو دکښنو له مخی دخوشحال د حبس علت په پیښورکی د سپ دامیر خوافی له نایب میرزا عبدالرحیم سره د ده شخصی مخالفت او حینی نورلوی اووارہ عوامل وو، چی د تولو تفصیل دلی نه ځاییږي ( فراقنامه، مقدمه)

(۴) دغه رقم څلویښت زره نه بلکه پنځوس زره دی ( وگوري، ادخوشحال دکلیات مقدمه ق مخ ) لوي خان خوشحال خان ختك په دې باب په خپله ویلی دي :

وغوښتی پنځوس زره روپۍ صوبه دار ماوې دریه نه کړم یوپوچك نه یو دینار

(کلیات ۹۳٦ مخ )

شت که من جهت شما یك حبه ودینارنمیدهم، بلکه میخواهم که بنده را به دهلی روانه کنید . صوبه دار پشاور خوشحال خان را به حفاظت تمام روانهٔ دهلی کرد اگرچه اقوام خوشحال خان چند مرتبه برای جنگ ورهایی دادن اوجمع شده بودند مگر خوشحال خان ازین ارادهٔ شان باز داشت. بالجمله دروسط ماه مبارك رمضان ۱۰۷۴هـ ق به دهلی رسید (۵) وبعد ازعرصهٔ چند دربارهٔ او ازحضور اورنگ زیب چنان احکام صادرکردندکه خوشحال خان دردهلی محبوس باشد. وعیال واطفال او در دهلی اورده شود ــ به مجرد صدور احکام شاهی پسران واو به طرف ملك خود روانه شدند ، یعنی سعادت خان ومیرباز خان جهت اوردن عیالها دروطن خود امده آنهارا به دهلی بردند (٦) بعد ازعرصهٔ چهارسال اورنگ زیب

(۵) د ۱٦٦۴ع کال داپریل له اواسطو سره سمون خوري .

(٦) دغه خبره هم سمه نه ده ، لومړی داچې میرباز خان دخوشحال خان زوی نه بلکه وروړی وُ او سعادتخان یې زوی دی . دهلی ته دخوشحال تررسیدو دمخه سعادتخان دده زوي ، میربازخان دده ورور او باقي خان تربور دمخه رسیدلی وو ، په دې نیامت چې دخوشحال دخلاصون لارې چارې ولټي مگر کامیاب نه شول ، اوبیرته وطن ته ستانه شول ، که څه هم باچا حکم کړی وُ ، چې دخوشحال اولاده دې دهلی ته راوستلی شي مگرداکارونه شو ، او اهل وعیال یې لومړي سیکری اوبیا سنگاووته لاړل ، خان دخپلې کورنۍ دغه دربدري په فراقنامه کې راوړې ، چې یوبیت یې دادی :

چې میشته په سنگاو دي په عظیم درباب لاهو دي

( فراقنامه انتقادي متن )

او تاریخ مرصع په دې باب کاږي :(( ... حمزه خان ، الله داد خان وغیره یوسفزي اکثراکوزي باثیزي را غلبه ، دخان علیین مکان زا هوا زاد یې سیکری کاتلنگ لره بوتلل . سراي یې وواهه . بادشاه چې واورېدل . دي یې په قلعه درنتهپور وخېژاوه) ) ( تاریخ مرصع ۲۷٦)

خوشحال خان را ازحبس رهایی داد (۷) ومنصبی که درعهد شاهجهان داشت برای او داده نه شد · اما اورا درزمرهٔ ملازمین خودمسلك ساخت بعد از چندی خوشحال خان خودرا مع عیال واطفال یکدام حیله از دهلی کشیده به وطن اصلی خودباز امد · بعد از آن به سبب عنا دوعداوت اورنگ زیب چند مرتبه اقوام خود را جمع کرده با افواج او مقابله کرد ودریك یاد و محاربه حریف خودرانیز هزیمت داده است· خوشحال خان ازحدزیاد در دیوان خود هجو اورنگ زیب کرده است چنانچه‌خود خان مذکور میگوید :

که فردوسی چند اشعار درهجو سلطان محمود غزنوي گفته امامن هجو اورنگ زیب را بارهاگفته ام ·

مذهب خوشحال خان ، اهل سنت وجماعت ومحب علمائی حقیقی ومتنفر ازشیخان ریاکاربود ·

عادات واخلاق : خوشحال خان صاحب سلوك ، واحسان ومروت وشجاع وسخی بود باوجودیکه درسال مالك بسیارمبالغ میشد اماچونکه انرا بطورجوانمردي وسخاوت صرف وبذل می کرد · به قول خود او گاهی بر اوزکوة واجب نشده بود (۸) شوق شکاروا نهایت زیاد داشت· چنانچه تا اخرعمر خود شکار میکرد اگرچه خوشحال خان شعر افغانی وفارسی رامیگفت، مگرشعرگویی رابدمیدانست·

عمر : تاریخ انتقال خوشحال خان معلوم نیست (۹) مگراغلباً یقین کرده میشود که

---

(۷) دخوشحال دحبس او نظربندي · موده په ۱۰۷۴ هـ ق کال دخلورمی خوریه وسط کی پیل کیزي اوپه ۱۰۷۹ هـ ق کال یی دعمردذلت اویدحالت دغه دوره پای ته رسی اوبیرته وطن ته راځی ·

(کلیات مقدمه ، رمخ )

(۸) خان ویلی دي : نه زکوة په ما واجب شو په درست عمر نه قربان

(ارمغان، قصاید ۳۲)

عبدالقادرخان ختك (۱۰۶۳ــ۱۱۲۵ هـ ق) په دي باب کښلی دي · ((سخاوت یی تردې حده و · · چی شپیته کال کم وبیش ده سرداري وکړه زکوة پرې واجب نه شه مال یی ترنصاب ونه رسیده ((گلدسته ۶۸ مخ )

(۹) هغه وخت چی مرحوم افغان په سراج الاخبارکی دلوي خان احوال کښل ، نوله دوي سره داسی اسنادنه وو · چی دوي ته یی دده دمرینی نیته ورښوولی وای · نوځکه ده په اټکلی توگه دده عمر تر ۸۰ کلنۍ پوري ښوولی دي · حال دا چی لوي خان په ۷۸ کلنۍ د ۱۱۰۰ هـ ق کال دربیع الثانی په اته ویشتم دجمعی ورځ له دنیاسترگی پټی کړي دي چی دغه نیټه د ۱۶۸۹ ع کال فبروري له ۲۰ نیټی اوپه شمسی حساب دحوت له لومړنیتی سره سمون خوري ·

( خوشحال خان ختك دمرحوم استاد کامل ۲۱۳ مخ د ۱۹۵۱ ع کال چاپ ادارهٔ اشاعت سرحد ــ پیښور )

عمراو مابین ۷۲ و ۸۰ خواهد بود ۰

کارنامهاي خوشحال‌خان : خوشحال‌خان مشهور ترین افغانان وخان زبردست قوم ختك بود ۰ قوم ختك قبیله ایست کثیر تعداد ، وبه سرحد افغانستان وهندوستان مسکن وماوا دارند ۰

دیوان خوشحال‌خان که بحر زخار پند ونصایح وضرب الامثال وجواهرنا یاب است ، درحجم ازکتاب دیوان حافظ (رح) بزرگ می باشد ۰ دیگر درعلوم وفنون مختلفه این شخص زاید ازیکصد کتاب تصنیف کرده است ۰ اما الحال از تصنیف او همین دیوان وفضل نامه ، وفرخنامه ، وریاض الحقیقه وعیاردانش (۱۰) ترجمهٔ انوارسهیلی به مشکل میسر میشود ۰ این بدیع افغان دراکثر معقولات ومنقولات علامهٔ دهرگذشته است ۰ علاوه ازین خان موصوف درشجاعت وجوانمردي وسخاوت رستم وقت وحاتم دوران خود بود ۰ خوشحال خان پنجاه وشش فرزند نرینه علاوه از دختران کثیر التعداد داشت ۰ که منجملهٔ ایشان ۳۲ فرزند اوبدرجهٔ اعلی شاعربودند ۰ اقوال اوقریب به درجهٔ اعجاز رسیده است ، واکثر انها ضرب الامثال گشته اند ۰ اشعار افغانی او بی‌مثل واشعار فارسی خوشحال خان بدرجهٔ اعلی میباشد ۰ خوف تطویل اجازه نمیدهد که اشعار او قدري نقل کرده شود تاهم بطور نمونه چهار شعر اودرافغانی وفارسی معروض میدارم :

اشعار افغانی

ته یوطلسم یې بې اعتباره | له خاك وباد له آب وناره
اول هیڅ وې بیا به هم هیڅ شې | په څان خبرشه وخداي دپاره

ایضاً

نیستي هستي ده که ته پوهیږي | لویي پستي ده که ته پوهیږي
بده ترهرڅه په دا جهان کې | خودپرستي ده که ته پوهیږي

---

(۱۰) دغه کتاب دخوشحال خان نه دي ، بلکه دهغه دلمسی افضل خان ختك (۱۸۳ اهـ ق مړ) دي ۰ دغه غلطی مستشرقینوکړېده ، اود هغو دلیکولمخې دپښتو لیکوالو لیکنوته یې هم سرایت کړی دی ۰ برنهارد ډورن (۱۸۰۵–۱۸۸۱ع) دپښتو منتخبات په مقدمه (۶ مخ) کی دغه کتاب دخوشحال بللی دی ۰ نوروهم داډول تیروتنی کړېدي ۰ اصلي خبره داده ، چی دغه کتاب دخوشحال تر مړینی ۲۸–۲۹ کاله وروسته ترجمه شوي دی ۰ افضل خان ددغه کتاب ترجمه د ۱۱۲۸ هـ ق کال له صفري وروسته پیل کړي ۰ اود ۱۱۲۹ هـ ق کال دمحرم په ۱۳ نیته یې له ترجمی فارغ شوي دی ۰ دغه کتاب دپارسی عیاردانش ترجمه ده ۰ چی پارسی لیکوال یې دجلال الدین اکبر (۹۶۳–۱۰۱۴ هـ ق) مشهور وزیر ابوالفضل دی ; دگلس رقه ددریم چاپ سریزه ۲۷ مخ ، دفاضل استاد پوهاند رشاد)

## اشعار فارسی

یك نیمه به لهو عمر باطل بگذشت　　برخی بغم شکل وشمایل بگذشت
ای دل پس ازین مباش چون بی‌خبران　　از بهر خدا که عمرت از چهل گذشت

ایضاً

امروزبه از قصر شاهان خانهٔ ماست　　چون آن بت بگزیده به کاشانهٔ ماست
گنجی که کسی به گنج ویران طلبید　　زین به مطلب که گنج ویرانهٔ ماست (۱۱)

احقرالعباد غلام محی الدین افغان

۲۷ شوال سنه ۱۳۳۳ ﻫ

(۱۱) سراج الاخبار، پنځم کال ۴ گڼه ۰ ۸ــ ۸مخونه ۱۳۳۳ﻫ ق کال ۰

## افغانستان د سرو زرو مرغی دی

داملك د هندوستان، بلوچستان دايران او د چين په ميانځ كې پروت دی . د ې ملك ته كه باغ ارم هرڅوك ووايي، نويې شك نشايي . ولې چې پاك رب د املـــك بلا تشبيـــه په مثال د خلد برين پيداكړى دی، اوبه د ې ملك كې سمې سبزغرونـــه زرغونه چمنونه خوږې اوبه، شيرينې ميوې، رنګارنګ ګلونه، ښايسته خلق، اوباغيـــرت سرې زښته(۱۲) ډېر دي . د دې ملك سيندونه او رودونه د تماشاو ننداروړ دي، اوبه هرځای اوبه هرکلې کې لويې لويې ولې اوبه هرکورکې لښتې (۱۳) بهيږي . د باغونـــو اود ګلشنونويې خوحساب نشته . د هرملك دعجائباتوكوردې د نتلو(۱۴) خلقوځــــای د تيكاو(۱۵) دی . ځكه د يورپ رټلې (۱۶) اود اهريك قابل سړي دلته شاوخواګرځـــی . د دې ملك په آب وهوا پسې دكشمير هندوستان، سمرقند اود چين مـــاچين خلق سرونـــه وهی اولاسونه ټكوي .

هندوستان سعير(۱۷) كشمير دې زمهـــرير
زموږ وطن دی يارہ خلد بی نظيـــــــر
(افغان)

د دې ملك خلق په ديندارې اوبه غيرت اوبه ډېره ماړه كې سارى(۱۸) نه لري، اوهيڅوك خپل مخې نه ګټي :

---

(۱۲) زښته : ازحد ازحد بسيار (س)

(۱۳) لښتي : جوی خورد (س)

(۱۴) نتلـو : مصيبت زده ګان (س)

(۱۵) تيكاو : جای ارام (س)

(۱۶) رټلی : شرلی، چاته بدرد ويل (ظفراللغات ۵۱۱)

(۱۷) سعير : آتش افروخته . وزبانه آتش سوزان (منتخب ۲۹۲)

(۱۸) ساري : مثل، سياب (س)

که پښتون شی گدا گرد کل جهان غزیں تلی د ږوړیږه دی تریو نان
هس شان مهمان نوازه خلق نشته لکه خداي چی پیدا کړی دی افغان
ویرد ووته زمري شي خوپه کورکی له ادبه ځان مرین کی تابه خان
دهرچا ځای له چی ورشی بن تکلیفه کښ پوزی درته تیاروي آش ونان

(رضوانی (۱۹)

سلطان سکندرهم دپښتنو په مهمان نوازۍ اوپه غیرت باندي قایل سوي وه پرنگیان خوهندوستان ته دسرو زرو مرغی وایی · مګر په حقیقت کی دا زموږ عزیزوطن د سروزرومرغی دی ولی چی په دي ملك کی هرقسم غلی ، عجب میوي ، دجواهراتو معدنونه ، د سروزرو کانونه دپستو ځنگلونه دهنجو (۲۰) د منتونه اود سروخښتوبیابانونه موجود دي · که موږ دخپل وطن مقابله دهندوستان سره په دي شان وکړو · نوښایي ، یعنی کوه هندوکش مو همالیه ، کوه سفید مو بندیاچل ، پغمان مو ، مساري ، آب ایستاده مود سانبر جهیل ، هیلمند موجهلم ، اوبه دګنگاموجوی شیر ، ارغنداومو چناب ، ارغسان مو د راولپنډۍ لتی · ترنك مؤسوان ، کابل مو لاهور ، قندهارمولکنهو ، هرات موامرتسر ·

---

(۱۹) میراحمد شاه رضوانی په ۱۲۷۹ ه ق کال دپیښور په اکبرپوره کی زوکړي دي دصوبه سرحد په پښتنوکی عالم سړی تیرشوي دی په خپلی مورنۍ ژبی سربیره په هندي ژبه او انگریزي هم پوهیده · · دپښتو ژبی گرامرین په اردو ژبه لیکلی دي ځکه وانیه نومیږي · دوه نورمشهور کتابونه یی چی دپنجاب دیونیورستی دپښتو په نصاب کی شامل وو ، یو شکرستان اوبل بهارستان · درضوانی په مهمو کتابوکی بل اثرتحفة الاولیاء دی · دي په ۱۳۵۳ ه ق کال وفات شوي دپښتو ژبی شاعر هم وو ، دیوان او نور آثارهم لري ·

(پښتانه شعراء ج ۲ ص ۶۵۸ــ ۶۶۰ ؛ دپښتو دادب تاریخ ۱۱۹ ــ ۱۲۰ مخونه ·)

(۲۰) هنجه : هنگ (س)

بلخ مو هستانپور، میمنه موښداراېن او استالف مو له کشمیرنه ډیر زیات دي . همداسې زموږ دوطن شیان په مقابله دهندکي ډیر لوړ دي بلکه ډیرخیرونه موچیري نه پیدا کیږي له دې سببه دجهان سترستر باد شاهان افغانستان ته راغلیدل ، اوخپل سرونه یې په دې ملك باندې ماتول ، اولاسونه به یې پسې مینل حضرت سلیمان علیه السلام چې نبي اوپادشاه دانس وجن وه هغه هم په کوه سلیمان باندې خپل تخت راکوز کړی وه اوسلطان سکندرچې دجهان په نیولو لهخپل ملك راوتلی وه هغه هم په سنه ۳۲۹ ع کې دحضرت عیسی علیه السلام نه دې ملك ته راغلی وه(۲۱) او په حدود دقندهارکې یې پهخپل نامه باندې یوښهرآبادکړ ، او هغه ته به یې سکندرآباد وایه .(۲۲) اونادرچې راغی په هغه جای باندې یې نادرآباد ښهرتیارکړ ، اواحمد شاه بابا خو پهخپل نوم باندې آحمد اباد ښهرجوړ کی ، او اوس دا هغه قندهاردي چې په سبب دخوز و میوو باد شاهانو نومونه تربیرته سول اوخپل ملکی نوم یې پاته سه .

## دافغانستان مشهور څیزونه

دکابل مدرسې ، میزان تحقیقات ، (۲۲) کارخانه جات ، اوزیارت دجابرانصارصاحب

---

(۲۱) دلته دموءلف (افغان) مقصد له میلادنه مخکې سنه ده . سکندر په ۳۲۹ ق م کال دژمي په اوایلو (نومبر) کې کابل ته رسیدلی وء . (تاریخ مختصر افغانستان ج ۱ ص ۴۱ ، م ۱۳۴۹ شرکال ، دکابل چاپ ، دلوي استاد پوهاند حبیبي تاءلیف) .

(۲۲) سکندر د ۳۲۹ ق م په اوړي کې آراکوزي سکندریه داوسني کندهار په شاوخوا کې جوړه کړه (تاریخ مختصرج ۱ ص ۴۰)

دجبې عالي شانه میلې (۲۳) دکمریو(۲۴) منارچکري(۲۵) دللندرتو تان اودهن غار. دده سبز ختکی، دچپلیا رهندوانی، دکزې(۲۶) انار، دجګدلك یاقوت، د آب زنګانی سکاره، دجلال آباد نارنج، ګنې، ګوړه اودچهارباغ صفا (حضرت صاحب) اودلغمان ملخیان اوزیات دمهترلام صاحب، دکنړ (شیخ باچاصاحب) او نوري وریجې. داړي شیخان، ددره نوربنایست، دشینواري سرشوړي، دلعل پوري جواري، دغوربند بادام، دپنجشیر دایکان، دنجراب پوځه، دپغمان دغره حوض، دبامیانو لوي لوي بتان، په غزنی کی زیارتونه، بند دسلطان اوبو ستینونه، په قندهارکـــــی

---

(۲۳) په ۱۳۲۲ هـ ق کال کی جوړه شوي دینی تولنه ده، دسراج الاحکام دتالیف تولنه چی پخوا جوړه شوې وه، او پنځوس تنه دینی علماً پکی شامل وو غړي یی لسوتنوته راټیټ شول. اودمیزان التحقیقات شرعیه نوم یی پرکښیښود، حاجی عبدالرزاق اخندزاده اند ریبی مشرو (دمیرسید قاسم خان له یادښتونو څخه). (دلوی استاد په منه)
(۲۴) دکابل له پخوانیومیلو څخه یوه هم د جبې میلی ده. دغه میلې به دحوت لـــه لومړۍ اوونۍ څخه پیل کیدې، اودنوروز ترورځی بسه یې دوام کاوه، دپاچاپه ګډون — دښارمختلفو طبقاتو په دغو ټکی ګډون کاوه، سازونه، محلی ستدري. لوبې، اونـــور مراسم به پکی ترسره کیدل. دخوراك شیان پکی جلبې او ماهیان وو (لمرمجله دوهم کـال ۱۲ ګڼه ۳۰ مخ ۱۳۵۰، میله های بهاری کابلی ها)
(۲۵) کمري یوکلی دی چی دکابل ښار څخه جنوب ختیځ لوري ته ۱۸ کیلومتره لیري دبګرامي په ولسوالۍ کی واقع دی دختیځ طول البلد په ۶۹ درجو ۱۷ دقیقو ۴۸ ثانیو اود شمالي عرض البلد په ۳۴ درجو ۲۸ دقیقو او ۲۱ ثانیوکی پروت دي. خلك یی بزګري کوي او ځمکی یی دلوګرله روده خړوبیږي. دمیوو باغونه هم لري هوا یی له کابله یوڅه تـــود ه اوداستوګنی لپاره ښه ده (جغرافیایی قاموس ۵ ټوك ۶۴ مخ ۱۳۴۹، افغانستـــــان اکاډیمی)
(۲۶) استادکهزاد ددغه مناریه باب کاږي: ((در افق جنوب شرقی روی تیـــغ کوهی خط عمودي سیاه رنګ باریکی معلوم میشود، این خط عمودي سیاه عبارت از منار (چکري) است منارچکري ازنظر مفهوم جغرافیایی، تاریخی، فرهنګی و معماري یکی از آثار بسیار مهم است.

منارچکري که روي تیغـه کوه قرار دارد، بحال موجود درحدود ۲۵ متریابیشتربلنــــدي دارد وقطر قاعدهٔ آن درحدود ۷۰ متر است. منارچکري به شکل استوانـه یی ساختـــه شده به نحوي که قسمت هاي بالاي آن بتدریج نازك شده میرود، حصه سرمنـــار به شکل زنګ شتراست... چنین معلوم میشود که درزمانه هاي باستان درحصـــص فوقانی منار مذکور (چرخه) یعنی (عرابه) که علامهٔ قانون وآئین بودایی بود وضـــع شده بود، منارچکري یك آبدهٔ مذهبی بوده موجودیت آن از ائین بودایی نمایندګی میکرد

نوموړي استاد اټکل کړي دي چی دغه مناریه داشوکاپه زمانه کی دد ریمی ترمیلاد دمخه پیړۍ په لومړۍ نیمائي کی جوړ شوی وي (وګوری: افغانستان دریرتو تاریخ ص ۲۰۶ — ۲۰۷)
(۲۶) اصل: کجی.

خرقهٔ شریفه، داحمد شاه بابا قبر او عالمان، په زاړه ښهرکی ځای دمیاعبدالحکیم صاحب(۲۷) لخکك او چهل زینی (۲۸) دارغنداو شکرپاره، سیب واروګان (۲۹) دخشکاوې آب جوش، توري وځکی ممیز اوانګور، دپنجوایی انار، دباباولی صاحب زیارت (۳۰) په خاکریزکی د شاه مقصود بابا کرامت، په ارغسان کی ددارونیکه نمسیان، دزمینداور طالبان دسیابند ګډان (۳۱) اوغوري، په هرات کی مصلامناري.

---

(۲۷) عبدالحکیم کاکړ مشهور په ناناجیوصاحب چی دکندهارکی په میاصاحب مشهوردی. د شاه حسین هوتك په زمانه کی د ۱۱۴۵ هـ ق شاوخوا دکندهاردخلکو ستر روحانی لارښود و. دزوکړي زمانه یې ۱۰۷۰ هـ ق کال ده او په ۱۲۵۳ هـ ق کال وفات شوی دي. مزاریې دبلوچستان دلورلایی په چوټیالي کی دی، اختصارحصن الایمان، نسب نامهٔ غلجی، دطریقهٔ تلقین په نامه پارسی مقاله دده آثاردي په کندهاردشیخیت دطریقو سلسله ده ته رسیږي (دمیافقیرالله پیژندلیك ۳۷–۳۸ مخونه. دلوی استاد پوهاند حبیبی تاٗلیف). دکندهارپه زاړه ښارکی دنارنج دمانيځ ترڅنګه یې اوس هم خانقاه شته، اویو مجاورکی هستوګن دي.

(۲۸) چهل زینه: لوی استاد حبیبی کښلی دي: ((چهل زینه برفراز کوه سرپوزه طرف غرب شهر قندهارطاق سنگی درکوه تراشیده شده، که مردم آنرا چهل زینه خوانند. ومحمدمعصوم آنراعمارت((پیش طاق)) خوانده است وگوید: ((که به فرمودهٔ بابرپادشاه درکوهی که موسوم به سرپوزه است ازسنگ بریده اند وآن طاقیست درغایت ارتفاع ودرمدت نه سال هشتاد نفر سنگتراش هر روز درآنجا کارکرده باتمام رسانیده اند. الحق جای نفیس وفرح فزاست...)) درطاق چهل زینه کتابه هایی به خط زیبای نستعلیق نشرشده است. ودرد و سطر دیوارغربی نوشته اند: که بتاریخ ۱۳ شوال سال نه صدوبیست وهشت محمدبابرپادشاه فتح قندهارنمود ودرهمین سال امرعالی به بنای این ایوان شریف نفاذ یافت... ودرنه صدوپنجاه وسه باتمام رسید)) او دکتیبی له مضمونه ښکاري، چی دجوړیدوکاریې په ۹۳۰ هـ ق کال پیل شوی، او په ۹۵۳ هـ ق کال پای ته رسیدلی دی. (ظهیرالدین محمد بابرشاه، ص ۱۱۳–۱۱۴. د ۱۳۵۱ ش کال،

(۲۹) اروګان = شفتالوګان (س)

(۳۰) دکندهارمشاهیرنومی کتاب لیکوال دده په باب لیکلی دی. ((دي دکندهار مشهور پیر اوبزرګوا رشخصیت دي. چی لویان اوواړه یې زیارت احترام کوي. مزاریې دکندهار دښار شمال لویدیز خواته په شپږ کیلو متري کی واقع دی، او دکال په ټولو موسمونو په تیره بیا په پسرلی کی زیات خلك ورځی. په پنجشنبې، چهارشنبې اوجمعې په ورځو کی هلته لویه میله جوړیږي. دده اصل نوم با باحسن ابدال و، دبزرګوارۍ، خرق، عادت دخرګندولو له کبله خلك بابا ولی ورته وایي په (۹۲۴ هـ ق) کی په کندهار کی وفات شوي دي)).

(دکندهارمشاهیر ۱۱۲–۱۱۸ مخونه، دمحمدولی زلمی تاٗلیف د ۱۳۴۹ ش کال دکابل چاپ)

(۳۱) ګډان: دګډ جمع = ګوسفند (س)

او د حکمتیادنهمر، په ترکستان کی مزار د شاه اولیاء، د شادیان خربوزي، په بلــــخ کی دعیارانوبرج ، د تاشقرغان انجیر، په میمنه کی زیارت دا صحاب کهف، پـــــه ایبك کی تخت د رستم ۰ د سنگ چارك تیکه، د قطغن آسان، د بدخشان لعــــل، داندخوي قالینی ، په کامرد کی دهاجرچینه، د درانیوحوصله ، دغلجیو بد دماغی ۰ دمحمدزیو شان وشوکت ، د هزارو ومحنت کشی دقزلباشو سلوك، دجبارخیلو خانان دسلیمان خیلو سانگه(۳۲) وهل دحسین خیلو دم وچوف دناصرو کدري(۴ ) داندړو اتبونه، داوت خیلو دوستی ، دازبکو تهرّد ترکمانوتوشخانی، دشغنان حسن، د تاجکو کمینی (۳۳) دساکریوستانه توب، داحمدزیوزړورتوب، مومند ومړنتوب، دتره کو ړو دیه ماري، دمنگلواو دتوریو بدي دمرهیلــو(۳۴) دولتمندي ۰

دعلیحضرت شهریاري، انعطاف اورحم دل ، دنایب السلطنه صاحب دانایـــــــی دمعین السلطنــه صاحب عدالت، دعین الدوله صاحب غوررسی، دعضدوله اونــــور د شهزادگانو او نورو کاردارانو صداقت اوخدمتگاري، دمحمودطرزي صاحب فصاحـــت او بلاغت نــهایت مشهور دي(۳۵)

## یو اعلان په پښتو کی

اول مقصد مو د اعلان دادی چی زموږ مبارکه ژبه رواج پیداکی او هرځوك دي بــه باب کی دترقی د پښتو ښه ښه مضامین په افغانی کی ولیکی ، او په واسطه ددي اعلان ټولوپښتنو ته خبر ورکوم که څوك زما یادبل چا دپښتو په مضامینو ایرادلــــــري هغه دي خپله مدعا په پښتو کی ولیکی اود سراج الاخبارمدیرصاحب ته دي راولیږي که بنده، دهغه له جوابه عاجز سه، هغه ته به پنځوس روپی په طورد انعام ورکـــړم ۰ اونعده هم شپږ میاشتی ده(۳۶)

---

(۳۲) سانگه = نیزه (س)

(۳۳) کمینی = خاکساري (س)

(۳۴) مرهیلو : سوداگــــــــران لوهانـــــــی وغیـــــرو (ملتون)
احقرالعباد غلام محی الدین افغان

(۳۵) سراج الاخبار ۶ کال ۱۷ گڼه ۰ ۳ ــ ۴ مخونه ۰

(۳۶) سراج الاخبار ۶ کال ۲۳ گڼه ۴ مخ

نثریمه برخه

# پښتني فولکلور

## د پښتو مشهور متلونه

(۱) نمر په ګوته نه پټیږي (۱)

(۲) د چا سره او مه پاخه نه خوري

(۳) که هر خوغرلوړ وي بیا یې هم سرته لاروي (۲)

(۴) تل کاله یې فقیري وکړه د جمعې شپه یې ونه پیژندله

(۵) هسې غرهسې کربوړی (۳)

(۶) تروږخ تیري اوبه بیرته نه جاروزي (۴)

(۷) که خان یې په یاران یې

(۸) د ډیرو لرګي د یوه غوزي (۵)

---

(۱) په ((متلونه)) نومې اثر (د مرحوم استاد نوري تالیف کې یې په دې بڼه ضبط کړي دي:
((لمر په د ګوتونه پټیږي)) (ص ۱۲۱، پښتوټولنه د ۱۳۲۷ ش کال چاپ).

(۲) بله بڼه یې داسې ده: ((غرکه لوړ دي لار پر سربیره ده)) متلونه ص ۱۰۴

(۳) بله بڼه: ((دا غرا و دا کربوړي)) شرقي سیمې.

(۴) بل شکل یې داسې دي: ((تروږخ چې او به تیرې شي، بیرته نه راګرځي))
(روهي متلونه ص ۹۵ د پروفیسور محمد نواز طایر تدوین او ترتیب د ۱۹۷۵ ع
کال چاپ د پېښور- پښتو اکیډیمي) رحمان بابا دغه متل په خپل لاندې
بیت کې داسې اخیستی دی:

تروږخ تیري اوبه بیرته نه جاروزي
نه جاروزي سیرساعت په بیرته بیا

(د رحمان بابا دیوان ص ۲)

(۵) بله بڼه: د ډیري لرګی د یوه غوزی (پښتو متلونه، د استاد بینوا چاڼ او ترتیب
د پښتو خیړنو بین المللی مرکز ص ۲۳۰، د ۱۳۵۸ ش کال چاپ) بل شکل یې:
((د ډیروا مسا د یوګیډ ی)) (روهي متلونه ص ۲۲۶) بل شکل ید د ډیرو لرګي د یوه ګیډ ی

(۹) که وروړشي وروړشي ورنه څه دخواږه اوړشي (٦)

(۱۰) په خپل کورکی خوسپی هم زمری وي (۷)

(۱۱) شنی خو په غلانه چیچلی کیږي (۸)

(۱۲) اخترپسې میږه نه دی

(۱۳) که چرګ نه وای اذان به چا کاوه

(۱۴) چی بادنه وی پانړه نه خوزیږي (۹)

(۱۵) بی میومست دی

(۱۶) په یو لاس کی دوې هندوانې اخیستی نه شی (۱۰)

(۱۷) خپله خوله قلا ده هم بلاده (۱۱)

(۱۸) دګوره غاړه دی

(۱۹) دبیزو پرهاردي

(۲۰) ددوبی سخوندر دی

(۲۱) بنیر وال دی

(۲۲) تیلی شړ شم زرغونوي

---

(٦) بله بڼه : ((که وروړسوې وروړسوي که نه ورځه دخواږي خواږه پروړ سـ ))
متلونه ص ۱۱۷

(۷) په روهی متلونه ص ۷۲ کی ددغه متل دري بڼی داسی راغلی دي :
((په خپل کورکی پیشو مزری وي ))
((په خپل کور کی سپی پیاوړ ی وي ))
((په خپل کورکی میږ ی هم توریالی وي ))

(۸) په متلونه ص ۹۸ کی دغه متل ((خو )) نه لري ·
بله بڼه : چی چرګ نه و ، اذان چاکاوه (متلونه ۳۷ مخ )

(۹) چی بادنه وي بوټی نه خوزیږي (روهی متلونه ص ۱۱۸) چی بادنه وي ونه نـه
ښوري (متلونه ص ۳۴)
په ځینو پښتنی سیمو کی د ((ونی )) پرځای ((ونه )) ویل کیږ ي ·

(۱۰) په یوه لاس کی دوې هندوانې نه اخیستلی کیږ ي (پښتومتلونه ص ۱۵۵ )

(۱۱) خپله خوله هم کلا ده هم بلا (متلونه ص ۲۸)

(۲۳) په بلو لنبو خیژي

(۲۴) دیو سفزیو لوز دی نه خلا صیږي

(۲۵) دکچور یو سیلاب دي

(۲۶) زور کړ شپ دي

(۲۷) چې اوسی په رنګ په دهغو سی (۱۲)

(۲۸) مچ په پوزه باندې نه پریږدي (۱۳).

(۲۹) په یوه چپلا خه دسلو کسو مخ خوزیږي (۱۴)

(۳۰) دنه میرو ملك سه بلو (۱۵)

(۳۱) دکول غویی دی

(۳۲) دهرچا ته خپل وطن کشمیر دی (۱۶)

(۳۳) دکراستی ملابند دي (۱۷)

(۳۴) دکوري آس دی هم یې خټی هم یې تینی

(۳۵) دنینو میره ده

(۳۶) غوز ونه یې ګټـل لګئ یې بایله (۱۸)

(۳۷) په سرراو رې بلا ده (۱۹)

(۳۸) ستوري یې الوتی دي (۲۰)

---

(۱۲) چې اوسی په خوی به دهغو سی (متلونه ص ۳۴)

(۱۳) نرمچ په پوزه نه پسریږدي (شرقی سیمی)

(۱۴) په یوه چپلاخه دسلو مخ خوزیږي (متلونه ص ۲۱) په یوه څپیړه سل مخـــــه داغیږي (شرقی سیمی)

(۱۵) په متلونه ص ۷۵کی ((دنه مړ وملك سو بلو)) په روهی متلونه ص ۲۶۵ دنه میرو ملك سوبلو

(۱۶) په متلونه ص ۱۴۰ کی تر((هر)) دمخه((و)) نشته.

(۱۷) دامتل نه بلکه اصطلاح ده ، د((کراستی ملابند کیدل)) بې اعتباره (پښتـــو اصطلاحات او محاوري ۲۰۲ مخ)

(۱۸) بله بڼـه: غوز یې ګاټـه سریی بایلو (متلونه ۱۰۶ مخ) بل شکل: غوز بـه ګټـی سربه بایلی (شرقی سیمی)

(۱۹) بل شکل: په شاراوړې بلا ده. (شرقی سیمی)

(۲۰) ددې نوموني (اصطلاح) بله بڼه داسی ده: ستوري یې لویدلی دی. ستوري لویدلی.. دبدبختۍ او طالع اوښتلو په مفهوم کاریږي (پښتو اصطلاحات او محاوري، ص ۲۵۴، داستان دمرحوم نوري، پښتوټولنه کابل ۱۳۲۰ کال.

(۳۹) زوړ بهار زین کړی آس دی،

(۴۰) دکورشپه په گور نه وي (۲۱)

(۴۱) دغاړی هاردي

(۴۲) دبنارس ټگ دي

(۴۳) دچرگ هندوکی دی

(۴۴) لنگه غوا ده

(۴۵) دژمی اوردی هرخوک ېی څانته راکاږي

(۴٦) دتروو مـــچ دی

(۴۷) دژمی شپه ده

(۴۸) له آسمانه شور واراکوزوي (۲۲)

(۴۹) دزهروگوټ دی

(۵۰) داوبو ماهی دی

(۵۱) ما رخوړلی خوله پړي نه ویریږي (۲۳)

(۵۲) تشی شلومبی (۲۴) شاربی

(۵۳) دمازیگرزیړی نمردی

(۵۴) داوسپنی چنـی چیچل دي

(۵۵) دمړیی له ذات نه دی

(۵٦) لټ غوبی دی

---

(۲۱) روهی متلونه ص ۲۴۸ کی : په لوړه بنه ضبط دی، خوبه متلونه، ص ۰ ۷ کـــی : دگور شپه نه په گورکیږي، داس هم ویل کیږي : دکورشپه په گورنه وي، دگورشپه په کور نه وي .

(۲۲) داهم اصطلاح ده : (( دآسمانه بنورواکښته کول )) چی دلوړ قدله پاره دکنایـــی په ډول استعمالیږي ( پښتو اصطلاحات او محاوري ص ۱۷۸ــ۱۷۹ )

(۲۳) بله بڼـــه : مارچیچلی له پـــــــــړي ویریږي ( پښتو متلونه ۴۲۱ )

(۲۴) اصل : شلنـــی

(۵۷) دپشکال باران دي

(۵۸) دهوا مرغی دي

(۵۹) خالی لوښی دی

(۶۰) دسپي خرمن بي په مخ اچولی دی(۲۵)

(۶۱) دجولاتنسته ده

(۶۲) دغشی گذار دي

(۶۳) دسوال سپرلی دی

(۶۴) دقیانوس دکال ده

(۶۵) دبله دگوروان په وشه

(۶۶) کارغه دزرکی تگ زده کاوه خپل یی هیر شه (۲۶)

(۶۷) هلته به دې زده سی چی په ادرگ بدرگ دې شپه سی

(۶۸) ایرابور غواړي بیرانورغواړي (۲۷)

(۶۹) دکونډې دوه غواړي وویوی ووت نه بل ننووت نه

(۷۰) الم نشرح خو هغه الم نشرح ده مگر خوله دملانصر وغواړي

(۷۱) ته به وایی چی ولی یی وهلی دي

(۷۲) داورسوي په اور رغیږي

(۷۳) دپردي زوې نه خپله رنده لورښه ده(۲۸)

(۷۴) دکونډې زوي دی

(۷۵) دخان دملا تسوره ده

(۷۶) دارهټ (۲۹) منگوټی دی

(۷۷) دخوورخو سیلمه دی

---

(۲۵) داهم اصطلاح ده بلد سپی پوست برمخ غوړول )) دبی حیاکیدلو ، بخیل کیدلو په مفهوم استعمالیږي (پښتو اصطلاحات او محاوري ص ۱۹۸)

(۲۶) بله بڼه : کارگه دزرکی تگ کاوه خپل یی هیر شو (متلونه ص ۱۰۸)

(۲۷) بل شکل : ایرابور غواړي او بیرانورغواړي (روهی متلونه ص ۲۲)

(۲۸) بله بڼه : دپردي زوی نه خپله لوربنه ده (روهی متلونه ۲۰۷)

(۲۹) اصل : هرهټ

(۷۸) له خياله دلونگو لونه کوي

(۷۹) د پوزې پېزوان سه

(۸۰) د شرم توکرۍ ده

(۸۱) پیازدې وي په نیا زدې وي

(۸۲) د بوډۍ خرخه ده

(۸۳) په شو دو سوی اوبه پو کی (۳۰)

(۸۴) د خره ماغزه يې خوړلي دي

(۸۵) لکه تپوس په نښتی مړ زباندې غوته وهی

(۸۶) د چرګ میخ تبیله ده

(۸۷) په مینه يې ضرر غوښتی دی

(۸۸) سود يې کاوه سودا يې بايلله

(۸۹) لاس يې تور سپی ښتلی دی (۳۱)

(۹۰) چې په ځان کې ويني په جهان کې ويني

(۹۱) چې درانه بارونه وړي خوراك يې ځوز دی

(۹۲) کونډې کونډۍ اخله د سر سلامتی عواړه

(۹۳) لنډه يې له اوز د سره برابراوه له بيخ يې ويوست (۳۲)

(۹۴) دلوګري چې لوته زړه نه وي نولوړ په لوته اچوي

(۹۵) له نیستۍ نه سپی سکولوي

(۹۶) هيڅ پيت نه لري

---

(۳۰) په شيدو سوی مستی پو کی (متلونه ص ۱۸) بله بڼه : په شودوسوي شړ ومبې پو کوي ۰

(۳۱) لاس يې تورسپی ښتلی دی (متلونه ص ۱۱۹) بله بڼه : لاس يې توري پشکی (پشی) ښتلی دي ۰

(۳۲) لنډ يې د اوز د سره برابر اوه د بيخه ووت (متلونه ۱۲۲) په ځينو نوروسيمو کی : لنډ يې له اوز د سره برابراوه لنډه له بيخه ووت ۰

(۹۷) په مینه یې سپین انګولي

(۹۸) سرېې د سرکوزي دی

(۹۹) د مېړ شیطان دي

(۱۰۰) د مابڼ سنډ ادي

(۱۰۱) د جوجري کټ دی

(۱۰۲) د خره لکۍ د ه چې هره خواته یې کړ وي نیم ګز خېژي (۳۳)

(۱۰۳) خرچې د خره پاته سی غوږ دي په بېخ کې پرېکی (۳۴)

(۱۰۴) غلبېل ولاړ شه کوزې ته یې وویل چې سوري یې (۳۵)

احقرالعباد غلام محی الدین افغان (۳۶)

۱۹ ربیع الثانی سنه ۱۳۳۵ هـ ق




---

(۳۳) د خره لکۍ چې د هرې خوا لویشت کوي یو شان (روهی متلونه ص ۲۱۹) بله بڼه: د خره لکۍ چې له هـــــر خوا لویشت کی دوې لویشتې ده (متلونه ٦٢)

(۳۴) خرچې د خره پاتې شی نو غوږ یې پرېکړه (روهی متلونه ۱۸۳) بله بڼـه: خرچی له خرو پاتی شی غوږ یې د پریکولو دی (شرقی سیمی).

(۳۵) غلبېل ولاړ سو کوزې ته یې ویل سوري لرې (پښتو متلونه ص ۳۷۹) د ا سی هم ویل کیږي: غلبیل کوزي ته وایې چې په تاکې دوه سوري دي.

(۳٦) دغه متلونه د سراج الاخبار د ٦ کال په ۱۴ ګـڼه ۸ـ۹ مخونو کی چاپ شوي دي.

د کابل او ننګرهار د پوهنتونونو
له خوا د افغان د شپېتم تلین
په ویاړ دغه لاندې کتابونه او رسالې
چاپ شوې دي :

(۱) دغلام محی الدین افغان افکار او آثار
(۲) د افغان یاد
(۳) ادبي څېړنې
(۴) پښتو لیکلار
(۵) د پښتو د نوي ادب لارې
(۶) پښتو ډرامه
دوې وروستۍ رسالې د افغان یاد
په ملتیا خپرېږي .
(۷) پښتو متلونه (د علومو د اکاډیمۍ
له خوا)

د چاپ شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه
دلوړو او مسلکي تحصیلاتو د وزارت مطبعه